# شهامت

د تاریخي سوبو

او فتحو نیکمرغه لړۍ !!

لسم کال، دریمه، پرلپسې ۵۹مه گڼه، محرم ۱۴۳۸هق، اکتوبر۲۰۱۶م

- جنرال دوستم؛ بازیچه دست وحدت ملی!
- د سعودي پر ضد د امریکا نوې طرحه؛ اصل ارادې څه دي؟
- دهجري قمري کلېز ځانګړتیاوې او فایدې



د علم او جهاد د سنګر له خادم

شیخ الحدیث مولوي ندا محمد ندیم صاحب سره مرکه

په ښاري جګړه کې د طالبانو د موفقیت چانس

افغانستان کې

دامریکا پنځوس کلنه جګړه!!؟

دیرغل دبګی

افغاني ټټوګان وپیژنئ!

دملګرو ملتونو سرړنی سرمشریزه

او د اسلامي امت دردونه!

# شهامت

علمي، کلتوري او اسلامي مجله

لسم کال، دريمه، پرلپسې ۵۹مه گڼه، محرم ۱۴۳۸هق، اکتوبر ۲۰۱۶م

دامتیاز خاوند :
دافغانستان اسلامي امارت
دفرهنگي چارو کمیسیون

مسؤل مدیر :
ابو ظهیر

کتنپلاوی :
شاهد "حقاني" لطیف عزم
حسن "علوي" بلال "وحید"
نعیم "صافی" عابد مجاهد
قاري حبیب

بیه :
یوه گڼه ۲۰ افغانۍ او ۳۰
کلدارې په پاکستان کې

تخنیکي مسؤل :
تخنیکي څانگه

یادونه
شهامت له سرمقالې پرته دنورو لیکنو مسؤلیت
په غاړه نه اخلي.


## لړلیک




ادرس : کابل کارته پروان عقب سینمای بهارستان    بریښنالیک : Sham.shahamat@yahoo.com

بسم الله الرحمن الرحیم

■ سرمقاله

# دتاریخي سوبو

## او فتحو نیکمرغه لړۍ !!

له نیکه مرغه! دعمري عملیاتو دبریاوو او سوبو سلسه دومره چټکه اوبریالۍ ده، چې په ترخ کې یې دادی دفتوحاتو بهیر له غرونو او کلیوالوسیمو نه ښکته دولایاتو تر مرکزونو او ښارونو وغځېد او دهېواد دځو مهموولایتونو ښارونه اومرکزونه دمجاهدینو د دوامدارې محاصرې لاندي دي .

په صلیبي دښمن او دهغه په لاسپوڅو دمجاهدینو تندریزبریدونه د هلمند څخه نیولې ارزګان، فراه، بادغیس،بغلان او کندزه غزیدلي او دګوډاګي رژیم په ځواکونویې دژوند کړۍ راتنګه کړې.

په خاصه توګه د یادو ولایتونو په ښارونو او مرکزونودعمري عملیاتو بریدونه هغه مهال نورهم شدید او پراخ شول چې کله اشرف غني او ټیم یې په برسلز کې د صلیبي اشغال دملاتړکوونکو هېوادوڅخه دنورومرستوترلاسه کولو لپاره ځولۍ نیولې وه او هغوی ته یې دا ډاډ ورکاوه چې افغانستان دده دټیم تر بشپړ مدیریت لاندې او مجاهدین یې په وړاندې ګواښونه او ننګونې نشي پېښولی.

لیکن هغه شیبه دستر خجالت او شرمنده ګۍ سره مخ شو چې دبرسلز دغونډې سره هم مهال داسلامي امارت ځواکونه دهېواد په شمال کې دکندزمرکز اوپه جنوب کې دهلمند دمرکز (لښکر ګاه) څنډو ته په فاتحانه ننوتو بریالي شول اونړیوالو ته یې دا پیغام ورکړ چې دلته دامریکا په مشرۍ صلیبي ښکېلاک ناکام او ټولې استعماري ارادې او هڅې یې بې نتیجې دي.

له دغو سیاسي بریاوو سره سره چې ددې سترو عملیاتو په نتیجه کې ترلاسه شوې هم مهال یې په ترڅ کې مجاهدینو ددښمن څخه پریمانه او کافي اندازه شوبلې، زغروال وسایط او پوځي تجهیزات هم نیولي چې په جنګ کې یې دامریکا یانو او دهغوی دګوډاګیانو په خلاف استعمالوي.

دچارو دکتونکو په اند: د مجاهدینو لاسو ته په کافي اندازه د پوځي تجهیزاتو او زغروالو وسایطو په ورتلو به راتلونکې کې دامریکا یانو او دګوډاګي رژیم خلاف دمجاهدینو عملیات نور هم شدید او پراخ شي، بل پلورسنیو داسې راپورونه خپاره کړل چې امریکا یې افغان ځواکونه دومره کمزوري دي چې لګیادي دمجاهدینو دبریدونو دمخنیوي لپاره له کابله ترافیک پولیس لومړیو کرښوته استوي، دغه راز په وروستیو کې ولیدل شول چې دامریکایانو له لوري دکومنډویانو په نامه روزل شوي اجیر ځواکونو هم د مجاهدینو په وړاندې دمقاومت روحیه بایللې اودجګړې دلیکوڅخه په داسې حال کې تښتي چې امریکایان یې په هوایي بمباردونو دتښتي لارې تړي...

دیته په پام امریکایان اړشول چې په ځینو ولایتونو کې دجګړې قومانده بیرته پخپل لاس کې واخلي څو دمجاهدینو په وړاندې اجیرو ځواکونوته دمقاومت مورال او روحیه ورو بښي.

دخبري سرچینو له قوله: دامریکایانو ددې بد عزم وروسته په وحشیانه او ظالمانه بمباردونو کې ولسي- خلکوته دسر او مال درانه زیانونه اوښتي ،څو په دغه ډول بربنډو جنایتونو له افغان ولس دخپلو ناکامیو غچ واخلي

دکارپوهانو په نظر راتلونکي کې جهادي وضعیت له دې پلوه اهمیت لري چې دکلیوالو سیمو په ځای به په ښارونو کې ترکیز ډېر ولري او ډارن دښمن ته به په ښارونو کې دمجاهدینو دبریدونو په وړاندې مقاومت ګران وي لنډه داچې نور هغه شیبې یقیني او رالنډې دي چې له ګران هېواده دصلیبي اشغال تغر ټول او په افغانانو دازادۍ سهار بیا راشي.



# په ښاري جګړه کې د طالبانو د موفقیت چانس



لیکوال: باهر حقپال

د عُمري عملیاتو په ترڅ کې مجاهدینو سږکال پر نورو محاربوي تکتیکونو علاوه د ښاري جګړې تکتیک هم وکاروه.

ښاري جګړه (Guerrilla warfare) د ګوریلایي جګړې له تکتیکونو څخه هغه بریالی تکتیک دی چې په لږ وخت او لږو امکاناتو سره دښمن ته د روند زیان اړولی شي.

مجاهدینو سږکال له همدې تکتیک څخه په هلمند، اروزګان، فراه، کندوز او بغلان ولایتونو کې استفاده وکړه، چې دښمن ته یې په درانه ځاني او مالي زیان سربیره په تبلغاتي لحاظ هم سخته ضربه ورکړه.

د بیلګې په توګه مجاهدینو وکړای شول د کندوز په ښار کې د دښمن له ټولو پوځي احضاراتو سره سره د هغوی مجهز ځواکونه تر خپلو تهاجمي بریدونو لاندې ونیسي، د امریکایانو له مکمل ځمکني او هوایي حمایت سره سره یې له هغوی څخه د ښار مهمې سیمې ولکه او تر اتو ورځو پورې په خپل واک کې وساتي.

په کندوز ښار کې د مجاهدینو اته ورځني مقاومت دا ثابته کړه چې له هغوی سره ولسي حمایت موجود دی؛ ځکه له ولسي حمایت پرته ناشونې ده چې هغوی دې یوه اونۍ مکمله پرته له دې چې له ښار نه بهر یې لوجیستیکي او پوځي مرسته وشي له خوراک او تجهیزاتو پرته تیره کړي.

دا لومړی ځل نه دی چې مجاهد کندوزیان مجاهدینو ته د دښمن د وهلو لپاره په خپل کور کې ځای ورکوي؛ بلکې تر دې وړاندې هم کله چې یرغلګرو امریکایانو په افغانستان یرغل وکړ همدې کندوزیانو په زرګونو هغه مجاهدین چې د کندوز ښار تر سقوط وروسته هلته محاصره پاتې شول همدا اسې په خپلو کورونو کې وساتل او وروسته یې ورته خپلو سیمو ته د خوندي رسولو زمینه مساعده کړه.

په ښاري جګړه کې د طالبانو شرعي او اخلاقي مکلفیتونه

د نظامي ماهرینو د وینا له مخې په ښاري جګړه کې هغه ځوک بریالی وي چې په خپل ځان باندې د ولس له حمایت نه باوري وي، ځکه ښاري جګړه په حقیقت کې د ولس د دفاع لومړۍ کرښه ده.

نو که مجاهدین (طالبان) غواړي په ښاري جګړه کې بریالیتوب ترلاسه کړي هغوی باید تر هرڅه وړاندې ښارونو ته په داخلیدو سره د هغه ځای د اوسیدونکو اعتماد ترلاسه او د هغوی د حفاظت لپاره کار وکړي.

که طالبان غواړي په ښارونو کې د جګړې همدا نوی تکتیک یې ښه نتیجه ورکړي باید لاندې ټکي په جدي ډول په پام کې ونیسي.

الف: دا چې زمونږ د هیواد په کچه د رسنیو په تیره د تلویزوني شبکو فعالیت تر ډیره بریده تر ښاري سیمې پورې محدود دی، او تلویزوني شبکې ټولې شپه ورځ د مجاهدینو خلاف تبلغات کوي چې د هغوی د تبلیغاتو له وجې ځینو ښاریانو د مجاهدینو خلاف ذهنیت اخیستی وي، نو مجاهدینو ته په کار دي چې هر ښار ته په ور



داخلیدو سره له ښاري او سیدونکو سره فوق العاده ښه رویه غوره او د هغوی د ځان او مال د ساتنې رعایت وکړي.

ب: لکه څرنګه چې په شرعي لحاظ هم د جهاد هدف د خدای د دین حاکمیت دی نه د ځمکو لاندې کول ، نو باید کوښښ وشي چې تش د ښارونو په موقتي نیولو سره د هغه ځای اوسیدونکي مسلمانان متضرر نه کړي ، کوم ځای چې مجاهدین پوهیږي چې د هغه نیول د سیمې د اوسیدونکو د ځان او مال د ضائع کیدو لامل ګرځي او د دښمن لخوا د هغه ځای بیرته عاجل نیول متحقق وي نو باید د هغه ځای له نیولو صرف نظر وکړي.

ج: دا چې اوس مونږ د کال په وروستي فصل کې یو او همدا وخت زمونږ د هیواد والو د ټولو زراعتي محصولاتو د ترلاسه کولو وخت دی ، نو باید مجاهدین د سیمې د خلګو د زراعتي محصولاتو د تحفظ ډیر خیال وساتي ، چیرته هم چې د دښمن په بمبار او یا هم د هغوي په پوځي عملیاتو کې د خلګو د زراعتي محصولاتو د تلف کیدو ویره وي هلته باید له ډیر احتیاط څخه کار واخیستل شي ، که چیرې د دښمن لخوا د ولس د زراعتي محصولاتو د تلف کیدو احتمال یقیني وی باید هلته له مؤقتي عملیاتو څخه خود داري وشي.

د: دا چې په ښارونو کې د اطرافو په نسبت مجاهدین ډیر بلدیت نه لري او د کلیو په نسبت هلته مختلط خلګ اوسي چې د دوست او دښمن پیژندل ورته ګران وي ، نو مجاهدین باید د خپلو موثقو استخباراتي او کشفي معلوماتو له لرلو پرته د عامو ښاري اوسیدونکو په خوله ځوک ونه ځوروي.

هـ: دا چې ولسي حمایت زمونږ د جهادي فعالیت اساس دی نو باید هر ښار ته په داخلیدو سره له ولسي خلګو سره نهایت ښه تعامل وشي ، هلته د دولتي ممتلکاتو تحفظ ته باید د لومړي توب حق ورکړل شي ، عام المنفعه خدماتو لکه بریښنا ، ابورسولو ، روغتیایي مرکزونو ، مکتبونو او ترافیکي سهولیتونو ته خاصه او جدي پاملرنه وشي.

و: په هر ښار کې د خیریه مؤسسو ، دسته جمعي غیر دولتي رسنیو ، او نورو عام المنفعه تأسیساتو د کار کوونکو او ممتلکاتو خاص مراقبت باید وشي ، کوښښ وشي چې د غیر مسؤلو کسانو لخوا د هغوی د تلف کیدو مخنیوی وشي.

ز: دا چې هر ښار ته په ورداخلیدو او د رژیم له حاکمیت څخه د هغه ځای په وتلو سره د ټولې نیول شوې سیمې د خلګو د ځان او مال د حفاظت مسؤلیت شرعا مجاهدینو ته منتقل کیږي نو باید مجاهدین په بشپړه توګه د دغه مسؤلیت په ښه پوره کولو کې خپل ټول وس وکاروي او پرینږدي چې غیر مسؤل او لا ابالي کسان په نیول شوې سیمې کې د مجاهدینو د بدنامي په خاطر په غیر مسؤلانه کړنو لاس پورې کړي.

که چیرې مجاهدین ورونه د هر ښار او هرې سیمې تر نیولو وروسته پورتني مقررات په پام کې ونیسي له شکه پرته چې نور به هم له ولسي حمایت نه برخمن او د خدای جل جلاله په لاره کې کړی جهاد به یې د هغه په دربار کې د قبولیت مورد وګرځي.

ان شاء الله



(هڅاندلیکنه)

# افغانستان کې دامریکا پنځوس کلنه جګړه!!؟

پـر افغانســتان دامریکایانولـه یرغل نـه وروسـته پـه لومړیـو کـې دلویدیځورسـنیو لـه خولونـه داسـې اوریـدل کیـدل، چـې دامریکـا او ناټوالو موخه لدې یرغل څخه یـوازې القاعـده او طالبـان دي ، بهرنیـان دکومې اوږده میشتیدنې پـه تکل دلته ندي راغلي، خـو خبره هاغلتـه ډنډوره شـوه، چـې نـږدې درې کالـه مخکې دحامد کرزي درژیم په وخت هندوستان ته د امریکا د جمهوریت پال ګوند مخکښ سناتور( لینډسي ګراهم)په یوه رسمي سفرکې ورغلی واو نوموړي دیوې خبرې غونډې پـه تـرخ کـې دسـپینې مـانۍ لـه چاروا کیوڅخــه هاغــه وخــت وغوښتل، چـې نـوره دې دکابـل لـه واکمنـوسره دا مسـئله سـپینه کـړي، چې مونږ امریکایان افغانسـتان کـې تلپاتې پـوځي هـډې او دڅلویښـتواو پنځوسـوکالو لپـاره پـاتي کیدنـه غواړو.

هاغـه وخـت ددې موضـوع حساسـیت ډیرغبرګونونـه راوپـارل او دولـس خـاموش اکثریت په ډاګه دامریکایانودایمي شتون مسترد کړ،حامدکرزي ددې لپاره چې دتـاریخ لـه څپیړې بچ شي، ترپایه دداسې ترون لاسلیک ته غاړه کښینښوده او دایې بي ګټـې وبالـه، خو له کرزي وروسته د(اشرف غني او عبدالله )ګډوله حکومـت واکمنوپـه ډیـره لیوالتیـا سره ارګ ته له ننوتلو څلیرویشت ساعته وروسته ددې تـورتړون پـه تنـدي دبې ننګـۍ او جفا لاسلیکونه کش کـړل اود(ګنـدمک )دبـدنام تـړون پـه څیـر یـې دا ځـل دانګریزانولـه لمسیانوسره دهیوادپلورنې له شرمه ډکه سودا وکړه .

اسلامي امارت لا هاغه وخت له امریکایـانو سره دامنیـت پـه نامـه داتـړون دیـوې اعلامیې په صدور سره وغانده اوپه ډاګه یې وویـل : چـې لـدې تـړون څخـه دوینـو بـوی راځـي او ددې تـړون عـاملین یـې تـاریخي جنایتکـاران وبلـل، همداسـې نوروهیوادمینوګونـدونو،ټولنواو علماءګرامـودا تـړون اشـغالګروامریکایانوته دافغانسـتان دخرڅلاو له قبالې سره مترادف وباله اوداکاریې یوه غیرقـانوني کـړنـه او داسـتقلال پرضـد دچارواکیو بل ګام وباله .

دسـپینې مـانۍ واکمنوپـه نمایشي- ډول اعـلان کـړه، چـې خـارجي عسـکربه د(۲۰۱۵ز)وروسته نه پاتي کیـږي او ددې خبرې دتوثیـق لپـاره یـې پـه غولـونکې ډول دخارجیانو بیرغونه هم راکښته کړل او تلویزونونو کې داسـې الـوتکې هـم وښـودې ،چې ددوئ عسکر انتقالوي، خو چې کله اسلامي امارت تیرکـال کنـدزولایت بشـپړډول فتحـه کړ، نو وکتل شول چې تللیو الوتکو او پوځیانو یې بیرته دکندزپه ښار پروزاونـه کـول او ولس یې بمباردمان کاوه ....

خـو اوس نـو خبره بیخـي ډنـډوره شـوه، اوآن دامریکـا اسـتخباراتوځینو اغیزمنـو کارمندانو هم په ډاګه کړه: چې امریکایان دوتلو په نیت افغانستان ته ندي راغلـې ،بلکـې

هغوئ دیوې اوږدې مودې او اوږدې ستراتیژۍ سره راغلي دي ،هغوئ کیدای شي، تر پنځوسوکالو پورې هم له افغنستانه ونه وځي او دلته دې هیواد کې جګړه وکړي ،هغوئ تیلو پسې راغلي ،دهغوئ اصل هدفونه نه طالبان نه القاعده او نه داعش دي ،بلکې دهغوئ عمده اهداف چین ، ایران ،روسیه او هندوستان دي ،نړیوالو الیکترانیکي رسنیودا خبر پداسې جملاتوکې خپور کړ (( کارمند پیشین سازمان جاسوسی و ارتش امریکا: "جنگ افغانستان توسط امریکا تا پنجاه سال دیگر دوام داده خواهد شد. این جنگ بخاطر القاعده، طالبان و داعش نیست. بلکه این جنگ به خاطر نفت

و کشورهای قدرتمند جهان چون چین، روسیه، هندوستان و ایران است.))".......

دامریکاداستخباراتي شبکې او پوځ دپخواني چارواکي له څرګندونو څخه په ښکاره معلومیږي، چې غربیان ا وامریکایان دبیرته وتلو په نیت ندي راغلي ،دهغوئ اهداف ډیر نا مقدس دي،هغوئ دیوې طولاني جګړې تا بیا نیولې او دیو طویل المدت جنګ په فکر سیمه کې میشتیدنه غواړي .

دافغانستان مجاهدین چې دیرغلګرو دتور سیلاب په مخکې د(سد سکندر) غونډې کلک او محکم ولاړوو اود اسلامي شریعت داصولوله مخې یې نړولو نړیوالو سره تعامل کاوه ،نه یې غرب ته دذلت سرکښته کاوه اونه یې دشرق خرسانوته جګجګی کاوه ،داسلامي امت مسلمانان چې دتیر رژیم څخه وروسته هم هیوادکې پاتې وو،ښه په نره یې ددوئ خدمت او ساتنه خپله دیني وجیبه وګڼله ،او پدې هکله یې دامریکاهر ډول غوښتنې داسلام داصولوسره سمې ځوابولې اوهرډول معامله یې دشریعت له مخې ورسره کوله، نو هماغه وو،چې نور دنړۍ کفارسره راټول شول او نږدې (۴۴) هیوادیزپوځ چې چارې یې امریکاسنبالولې، په اسلامي امارت نابېره یرغل راوړاو نن یې دادی دهیواد پوځي وضعیت دې سرحد ته رسولې چې همدوئ یې هم په چاره نه پوهیږي .

طالبانوچې ددوئ سره دمتنازعو موضوعاتو په باب هرې اصولې او معقولې معاملې او مذاکرې ته تنازل کاوه، خو دوئ چې دخپلې تکنالوژۍ غرور په هوا کړي وو، دا خبرې ورته هسې خیالي کیسې ښکاریدې او چندان حساب یې پرې نه کاوه ،خو اوس چې خبره بیخې بدله شوه ،دوئ دماتې په درشل کې دي اوشعارونه یې دروغ وختل ،نولکه داوبو اخستې انسان څګ ته هم لاس اچوي او ځان ته دخلاصون کومه لاره پیدا کوي .

هوکې !!

له امریکایانوسره به دپنځوسوکالودجګړې تصامیم وي ،خو مجاهدینودقیامت تر ورځې پورې دجهاد او دکفارو سره سپیڅلې جګړې لپاره ملاتړلې ،دوئ له یرغلګرو کفارو سره جګړه جهاد او ستر عبادت یې بولي، نو له پنځوس کلونو وروسته به هم مجاهدین ستومانې محسوس نکړي اونه به ددوئ پر خلاف جهاد دیوې شیبې لپاره ودروي .

اسلام چې دمسلمانیدو، جهاداو جزیې نه په غیر بله لاره دمحاربو کافرو سره نه ویني ، نودذې لپاره دسرونواو مالونو په نذرانو هم نه ستړې کیږي ،افغانان چې داسلام له مبین دین او ملي ارزښتونو څخه بل شئ نه پیژني ،نو اشغالګروته ددې دوو ارزښتونو په رڼا کې پریکړه پکار ده او ددې غیور ملت ایل کول او تسخیرهغه ارمان دی، چې ددوئ اجدادواو اباوو هم له ځان ګور ته وړی ،امید دی ،چې دوئ به یې هم له ځان سره ګور ته یوسي او دپنځوسوکلونو اسرې به یې خاورې ایرې شي !

# دملګروملتونو سږنۍ سرمشریزه اوداسلامي امت دردونه!

# عبید، تنویر

په ۱۹۴۵ میلادي کال کې تردې شعار اوادعا لاندې ، چې په نړۍ کې به جنګ او دجنګ عوامل له منځه وړل کیږي اوبشري ارزښتونه به ژغوري ، نو دملګروملتونو دسازمان بنسټ کیښودل شو

ملګرو ملتونو هم ظاهرا په خپل منشور کې ولیکل چې له جګړو ، تبعیض او نابرابری سره به په ټوله نړۍ کې مقابله کوي اوزیاربه باسي ترڅو انسانان په عدل ، سوله او ترقی کې ژوند ترسره کړي.

غربیانو دملګرونو ملتونو دمتدصیانو او موسیسینو په شکل کې دانحصاراوخودخواهی یوبل ګام پورته کړاو دامنیت شوراپه نوم یې دنړۍ دمهمو مسایلواوتصمیم نیوني دویتوحق هم له ځان سره خوندي کړ اودملګروملتونودجوړیدوله ورځ ي نه یې ترننه پوري صرف خپلې استعماري موخې او ګټې دامنیت شورا له فورم نه دځان په نفع محفوظي وساتلي اوپاتي ولسونه اوملتونه یې له هرډول حقوقواو خودارادیت څخه محروم او بې برخي کړل.

دملګرو ملتونو دتاسیس ۷۱ کاله پوره شول ، دهرکال دسپتبمر په میاشت کې دنوموړي سازمان په انګړکې دهیوادونودولسمشرانوپه کچه سرمشریزه غونډه جوړیږي ، چې سږ کال هم دغه مهمه ناسته ترسره اودهر هیواد ولسشمراوبایي استاځي دملګرو ملتونو مجمع ته ویناوي وکړي

که دملګرو ملتونو له تیر۷۰ کلن دوراو حالت څخه تیرشواو تنها دورستي ۱ کال په اوږدو کې یې کړني ، تصماميم اوپه خاص ډول له اسلامي امت او دمسلمانانو له هغو دردونو او مصايبوسره چې په لوی لاس امریکایانواوغربیانو دغومظلوموملتونوته ورله غاړي کړي ووارزوو ، داحقیقت به څرګند شي ، چې ملګري ملتونه دمسلمانانو او اسلامي هیوادونو لپاره هیڅکله دخواخوږي ، ترحم اوروغ نیتی فکر اوتصمیم نلري!!

تیر یوکال په داسې حال کې ترسره شو چې په افغانستان ، عراق ، فلسطین ، سوریې ، لیبیا، کشمیراومیانمار کې دزرګونو مسلمانانووینې وبهول شوې ، جګړې او قتل عام پکې جاري وو ، هوایی بمباری ، ډرون بریدونه اودهرډول بشریت ضد وسلوداستعمال اوتمرین لری پکې توده وه اوپه لسهاوو زره مسلمانان دشکنجو،ځورونواو اسارتونوشاهدان اوقربانیان ول

دتیریوه کال په اوږدو کې په میلونو مسلمان وګړي دجنګونواو ناسموشرایطو له امله اړ شول چې خپل هیوادونه اوټاټوبي پریږدي، دغرب او اروپا په لور دکډوالی ستونزمن حالت اوسختو شرایطوته مخه کړي اوپه مقابل داروپایانو دانسانیت ضد چلند او برخود نادوي وزغمي!!!

خودهمدغواونورو کړاوونو او ناورینونو په مقابل کې دملګرو ملتونو رول لکه دپخوا په څیرلدې امله معاندانه ، یک جانبه اوبې تفاوته وو چې په دغو ټولو اسلامي ټاټوبو کې چې دجګړو اورونه بل اوهر ډول ناخوالو پنجې خښې کړې ، ترشا یې په مستقیم او غیرمستقیم ډول دامریکااو غربي هیوادونو لاس او

دخالت موجود دی اوداخبره خو لــه هــرڅول شــک او تــردد پرتــه ښـکاره او ظـاهر ده چــې ملګري ملتونه او یا دامنیت شـورا هغه بنسټونه اواداري دي چــې امریکااوغربیان یې رهبري کوي ، واک او اختیــار یــې دهمــدوئ پــه لاس اوګــورت کــې دی او ملګــری ملتونـــه هیڅکلـــه دا اجازه نـه لـري چـې دامریکـا او غربیـانو لـه خوښـي اومصـلحت پرتــه یــوه اعلامیــه هــم جــاري کړي!!

همــدا امریکــا اوغربیــان دي چې په افغانستان اوعراق کې یې دجګړي بټـی تـوده اوپایـداره ساتلي ، له یوې ورځې نـه بلـې ورځـې تـه دجګـړي دپراخولـو کوشــش کــوي ، کلــه دنــورو پوځیانو درولیږلو اعلانونه کوي ، کلــه دهــوایي بمبــاریو، ډرون بریــدونواو دB52 الوتکــو دبیــا کارولو امرونه صـادروي اوکلـه بیا دنړۍ پـه هرکـونج او کنـار کې ځانتـه داحـق ورکـوي چـې هرهغه څوک پـه نښـه کـړي او شهیدیې کـړي چـې دامریکایـانو ګټو او منافعو ته ګواښ جوړوي



دغـه راز ددې پرځـای چـې دفلســطین داوږده بحــران اودمسـلمانانو دمتفقـه معضلي دحل په حصه کې جدي ګام پورته شوی وای او داسرائیلو غاصب رژیم مهار کړل شي ، امریکا ورسره د۴ سـوه ملیـارده ډالـرو پـه ارزښـت پـوځي او اقتصـادي تړونونه لاسلیک کړل ، دکشمیر مسئله چې په هرقیمت بائید نوردحل معقول حل موندلای وای او دکشمیر ولس ته دملګرونـو ملتونـو دپریکـړو لـه مخـې دارام او سوکاله ژوند حق اواختیار ورکړل شوی وای ، په لـوی لاس امریکـا اوغربیـانو تازه ددې هڅه پیل کړي ترڅو دهندوسـتان اوپاکسـتان تـرمنځ جګـړه پیـل شي اودغه حساسه سیمه دجنګ او تباهی په میدان واوړي.

دسوریې موضوع دامریکا ، روس اوددغو هیوادونو دهمنوا قوتونـو دسـیالی دډګر په توګه په ویرانه او هدیره واوښته ، لیبیا دکورني جنګ په لمبو کې سوځي ، دمیانمار مسلمانان لاهم ددولتي بودایانو دقساوت او ووحشت په کینو او تناره کې سوځول کیږي!!!

نـواوس پوښـتنه داده چـې ملګروملتونـو دتیـره کـال پـه اوږدو کـې دمسلمانانونو دغه کوم یوه درد اوغم ته ځـان ورسـاو اودحـل درمـل یـې ورتـه پیداکړل ؟

سږ کال دملګرو ملتونوسرمشریزه په داسې حـال کـې تـرسره شـوه ، چـې دامریکا په طرف چې پـه ټولـه نـړۍ کـې دشرارت اوبـدبختیو مهـم محـور دی اودمسلمانانوپه هره ستونزه او کړاوکې پوره دخالت لري ، هیڅا هم داعتراض او نیـوکې ګوتـه پورتـه نکـړه اونـه یـې دملګـرو ملتونوپـه کـرداراورول چـا داپوښتنه راولاړه کړه چې دغه سازمان دمسلمانانو کوم غم او مصیبت تـه ځـان رسولی او دیوه خواخوږي او بې طرفه جهت په توګه یې خپل مسؤلیت ادا کړی،

دملګرو ملتونو په مجمع کې دنړۍ اومسلمانانو دبې حسی اوبې همتی لـه وجې دامریکاولسمشر اوباما چې په اصل کې دمسلمانانو لوی قاتل اوبـدخواه دی دخپلې وینا په تـرڅ کـې پـه خپلـو ټولـو جرمونـو او جنـایتونو پـرده واچولـه اوپه نړۍ یې دخپلې باداری دتوجیه لپاره دترهګرۍ په نامه جـوړه شـوي ټاپـه نوره وکاروله چې هغې ته به دوام ورکوي او په پلمه به یـې داسـلامي امـت له ارزښتونو او مصالحوڅخه نور غچ اخلي او اووینې به یې څښینې

نو ویلای شو چې دملګرو ملتونو سږني سرمشـریزه دمسـلمانانو لپـاره لـه غمونو اودښمنیو ډکه وه او ددې کوشش وشو چې دمسلمانانو په زخمونو نـوری مالګي ودوړول شي اومذید په مایوسیو اوتراژیدیو کي اخته شي.

فرهاد



# دهجري قمري کلېز
# ځانګړتیاوې او فایدې

د هجري قمري کلېزې (تاریخ) پیل له محرم الحرام کېږي، ځکه داسلام نه وړاندې عربو خپل حسابونه په قمري تاریخ کول، البته په مدینه ،مکه او شاو خوا کې میشت یهودي قبایلو د عبراني (یهودي) تاریخ ترڅنګ دخپلو کلتوري او سوداګریزو ګټو لپاره دخالص قمري په ځای قمري شمسي حساب کاروه،حضرت عمرفاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دخپل خلافت په رسمي کاغذونو اولیکنوکې یواځې اسلامي قمري هجري تاریخ لازم کړ دا دنوموړي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ داسې کارنامه ده چې دقیامت تر ورځې به دوام ولري انشاءالله.

خو د افسوس وړ داده چې نن سبا مسلمانان عموماً بالخصوص ځوانان چې دراتلونکي معماران او انځور ګران دي داسلامي میاشتو نومونه ورته نه ورزي، که څه هم دا ړتیا په مهال دعیسوي تاریخ لیکل باک نلري خو مسلمانان باید بالعموم داسلامي هجري قمري تاریخ لیکلو او استعمال ته اولویت ورکړي ولې داسلامي میاشتو نومونه یادول او دقمري تاریخ اهمیت او عظمت پېژندل دفرض کفایي حکم لري ځکه دشرعي احکام لکه، لمونځ، روژه حج او دنورو اداء تر قمر ي اړه لري، روژه په قمري میاشت (رمضان) کې راځي، عظیم الشان قرآن هم په رمضان کې نازل شوی دمیرمنو دعدت تیریدو ،زکات ورکولو لپاره هم قمري تاریخ معتبردی او هم داراز دواړه اخترونه (کمکی او لوی اختر) لمانځل د قمر تر راختو پوري اړه لري...

مسلمانان چې نن سبا داسلامي تهذیب او تاریخ نه لري دي او خپلو ځلانده اسلامي ارزښتوونو ته په شاګرځولو یې اسلامي تاریخ هم له یاده ویستلی ، پکاردی چې مسلمانان خپلو ماشومانو ته دنورو اسلامي زده کړو ترڅنګ داسلامي میاشتو نومونو ور ښودلو ته هم توجه وکړي.

دقمري تاریخ اساس د زمکې نه دسپوږمۍ میاشتني ګردش او دهرې بلې میاشتې پیل د نوې میاشتې راختو څخه کېږي، په میلادي کلیزه کې دتاریخ پیل دلمر له ډوبیدو کېږي اوبل میلادي اوشمسي- میاشتې کله ۲۹، ۳۰ ،۳۱آن ۲۸ ورځې راځي. په میلادي تقویم کې نن سبا ورځ شپه له دولس بجو پیل کېږي او په اړه یې له وړاندې نه دا بالیقین طی کېږي چې د راتلونکي کال کومه میاشت به څو ورځو وي؟ ډېر کم تغیر کوي، څنګه چې فروري میاشت عموماً ۲۸ ورځو وي ،یواځې په هروڅلور کالو کې یوه میاشت د ۲۹ ورځو وي ،پاته نورې پخپل حال وي، ځکه دمیاشتو ناریخونه خود ساخته او له ځانه جوړدي نه دکومې قاعدې او قانون تابع، او دتولو ورځو شمیر ۳۶۵ اوڅلور کاله وروسته یوکال د ۳۶۶ ورځو راځي. هر چې قمري تاریخ دی په هغه کې کال ۳۵۴یا ۳۵۵ ورځې وي.

دقمري تاريخ بله ځانګړتيا ابهام دی ،چې يکې ډېر مصلحتونه پټ دي،مثلاً :له دې ابهامه ډېرځلي پيدا کيدونکی انتظاري کيفيت له ځان سره جلا خاص خوند او مزه لري ،په نړۍ کې مسلمانان دمياشتې دامکاني ليدلو اونه ليدلو په مهال دانتظار کيفيت کومې شپې لنډوي او يا دمياشتې دليدلو لپاره کوم کوښښونه کېږي، هغه مهال يو خاص ذوقي کيفيت وړاندې کوي چې کله ماشومان ،لويان، سپين روږي او ځوانان ټول مياشتې کتلو ته انتظارباسي په دې توګه يودخوشالۍ منظر منځته راوړي او که له وړاندې څخه داختر ورځ تعين او معلومه وي، بيا به د مياشتې په ليدلو چې مسلمانان کومه خوشالي لمانځي نه ترلاسه کېده. دقمري مياشتو دنه مطابقت يوه اهمه ګټه داده چې ځيني اهم عبادتونه لکه روژه نيول په ټولو موسمونو کې راځي ،کله چې يو تن له بلوغ وروسته په ۱۴يا ۱۵کلنۍ کې روژه نيول پيلوي تقريباً دشپيتو -اويا کلو په عمر کې چې روغتيا يې حالت يې خراب نه وي هم دروژو نيولو وس لري، نو هغه ته په ټولو موسمونو کې دوبي،مني،ژمي، اوپسرلي کې دروژو نيولو فرصت په لاس ورزي يعنې په ټولو يادو موسمونو کې دروژې نيولو له سعادت څخه برخمن کېږي.

که دشرعي احکامو لپاره د قمري په ځای شمسي مياشتې اساس وای،نو ټول عمربه روژه په يوه موسم کې راتله او دنړۍ په شمال کې نيمه کره او په جنوب کې نيمه کره دموسمي تضادونو له وجې به په ځينو سيمو او هېوادو نو کې خلک اړوو چې هميشه په ګرم موسم کې اوپه ځينو کې به هميشه په يخ موسم کې روژه نيول کيده اوپه دې لړ کې به مسلمانانو دموسمونو د بدلون څخه هغه ګټه نه پورته کوله کومه چې د اسلامي او هجري تقويم په کارولو ترلاسه کوي..

په دې علاوه پوهانو دقمري تاريخ ځيني نورې فايدې او ځانګړتياوې هم ليکلي چې من جمله دهغو څخه دادي: چې دکله نه هجري تاريخ پيل شوی له هغه مهاله تراوسه يکې کوم ترميم ندی راغلی داځانګړتيا غالباً يواځې قمري تاريخ ته په برخه ده بل په هجري تاريخ کې اوونۍ دجمعې وروسته پيليږي کومه چې سيد الايام (دورځو سرداره ده) په دې علاوه په هجري تاريخ کې دشرک او نجوم پرستۍ هيڅ شائبه ځای نلري څکه دمياشتو نومونه دنوروتقويمونو پشان کوم پاچا، سيارې او د ديو نامه سره نسبت نلري...

لنډه داچې اسلامي تاريخ له پامه غورځول له شرعي پلوه دګناه ارتکاب دی، يکاردی مسلمانان ورته ځېر اووسي او خپل ماشومان وپوهوي چې دنوروتاريخونو په ځای اسلامي هجري قمري تاريخ استعمال کړي کنه راتلونکي نسلونه به اسلامي تاريخ ته يومخ شا کړي حال داچې قمري تاريخ زمونږ دکلتور، تهذيب او اخلاقو ساتونکی دی په پای کې دعا کوو چې الله تعالی دې مسلمانانو ته دهجري قمري تاريخ دکارولو توفيق ورکړي امين



داسلام دویم راشد خلیفه حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ هغه روښانه روڼ او ځلیدونکی لوړ میناردی چې دنبوت په ژبه ستایل شوی او د شمیره اوصافو او فضایلو څخه برخمن دی تردې پورې دالله تعالی پیغمبر هغه دحق او باطل ترمنځ دبیلتون او فرق نښه یا علامه ګرځولی او دفاروق ویاړمن لقب یې ورکړی درسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمان دی:

لقد کان فیما قبلکم من الامم محدثون فان یک احد من امتی فانه عمر(بخاري ۱ټوک ۵۲۱مخ مسلم ۲ټوک ۲۷۶مخ)

په تحقیق سره چې په وړاندینو امتونو کې محدثین تیردي، زما د امت محدث که دی نو هغه عمر دی، په بل روایت کې دي: صحابه وو له رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه وپوښتل محدث څوک دی؟ رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل: فرښتې چې دچا په ژبه خبرې وکړې( تاریخ الخلفاء لسیوطي ۱۹۴مخ)

په دې وجه رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمایلي: ان الله جعل الحق علی لسان عمر وقلبه بیشکه الله جَلَّ جَلَالُهُ دعمر په ژبه او زړه حق جاري کړی دی.( ترمذی ۲ټوک ۲۰۹مخ)

راځئ !دهغو احکامو او فرامینو څېړنه وکړو چې دعمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ درضا اومنشاء سره سم نافذ اوپلي شوي څو خپل ایمان او یقین ته تازه ګي وبښو!

قُل مَن كَانَ عَدُوًّا لِجِبرِيلَ فَإِنَّهُ نَزَّلَهُ عَلَى قَلبِكَ بِإِذنِ اللهِ مُصَدِّقاً لِمَابَينَ




يَدَيهِ وَهُدى وبُشرى لِلمُؤمِنِينَ(البقرة: ۹۷)

ورته ووایه څوک چې دجبریل امین دښمن وي ، پس داقرآن خو هغه دالله په حکم ستا په زړه نازل کړی ، دا قرآن دپخوانیو کتابونو تصدیق کوي او دایمان خاوندانو لپاره هدایت او زیری دی

مفسرین ددې ایت په شان نزول کې فرمایي:چې زیاتره وخت به حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ دیهودو مکتب ته راته او دهغوی سره به یې په مختلفو موضوعاتو خبرې کولې یوه ورځ یهودو درس په مهال داسې څه بیان کړل چې دقرآن موافق وو، حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په دې خوشالا شو چې تورات هم دقران تائید کوي ناڅاپه په هغه ځای پیغمبر صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تیرشو یهودو وویل: عمره ورشه! خپل پیغمبر ته ورسره یوځای شه، حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ هغوی ته وویل: چې دتورات په رالیږونکي رب سوګند درکوم چې زما پیغمبر برحق دی کنه؟ یهودو چوپ شول دهغوی مشر دځان خلاصولو لپاره وویل: ستاسو پیغمبر ته حې کومه فرښته راوړي؟ حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وویل: جبیریل آمین، هغوی وویلې: هغه خو زمونږ دښمن دی (ځکه په زمونږ په پلرونو یې عذابونه نازول او داسلام په خلاف زمونږ له پټو سازشونو

محمد صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته خبرور کوي) که ستاسو پیغمبر ته میکایل وحې راوړلی کوم چې موسی علیه السلام ته هم وحې راوړه نو مونږ به ستاسو د پیغمبر نبوت منلی و، یعنې درسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نبوت نه یې په دې وجه انکار کاوه چې هغه ته وحې جبریل راوړي، حضرت عمر له هغوی نه وپوښتل : دا دواړه فرښتې څه کار کوي؟هغوی جبریل تنګې او عذابونه راولي او میکایل باران او رحمتونه نازلوي، حضرت عمربیا وپوښتل:د دې دواړو مرتبه څه ده؟ دواړه دالله تعالی مقربې فرښتې دي یوه دعرش ښي خواته بله دعرش کیڼ لورته وې حضرت عمر وفرمایل: بیا دواړه دښمنان نشي کېدای، دایې وویل او روان شو، ددې جریان څخه درسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خبرولو لپاره نیغ هلته لاړ چیرې چې رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دصحابه وو سره یوځای ناست و، درسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نظر چې په عمر ولګیده وې فرمایل:عمره! ایا له تازهراغلې وحې دې خبر نکړم ؟عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عرض وکړ ولې نه یارسول الله! رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پورتنی ایت تلاوت کړ حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ مخ دخوشالی نه وپرقیده، او ویلې یا رسول الله! د الله په هغه ذات سوګند چې ته یې په حق استولی یې ، زه ددې لپاره راغلم چې دیهودو سره دشویو خبرو نه تا خبرکړم خو الله تعالی زما دارتلو څخه وړاندې ته خبر کړې (اسباب النزول لامام ابو الحسن علی بن احمد النیشافوري ۱توک ۳۰۰مخ)

فَلَاوَرَبِکَ لَایُؤمِنُون الخ (النساء: ۶۵)

## شان نزول

دیو یهودي او منافق ترمنځ په څه لانجه راغله دفیصلې لپاره هغوی دواړه رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته لاړل، رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دواړو خبرو او دلایلو له اوریدو وروسته دیهودي په حق کې فیصله وکړه ، په منافق دا درنه تمامه شوه او دفیصلې له منلو یې انکار وکړ حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته په ورتلو مصر و، کله چې دواړه حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته لاړل ، حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ته وویل: تاسې رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته ورشئ هغه به فیصله وکړي اوزه د فیصلې کولو واک نلرم یهودي وویل: هلته فیصله شوې حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ له منافق وپوښتل هغه وویل هو! رښتیا هم رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فیصله کړیده خو له هغه نه په فیصله کې تیروتنه (معاذالله) شوې ،حضرت عمر صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ددې په اوریدو لاړ له کوره یې توره راوړه د منافق سر یې قلم کړ، منافقانو دحضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ خلاف رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته عریضه وکړه الله پاک دحضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ په حق کې پورته ایت نازل کړ( ابن کثیر ۱توک ۵۲۱مخ) کله چې جبریل علیه السلام دغه وحې راوړه وې فرمایل: ان عمر فرق بین الحق والباطل فسمی الفاروق (اسباب النزول ۱۰۸مخ) بیشکه عمر دحق اوباطل ترمنځ فرق کوونکی دی په دې وجه ورته فاروق نوم کیښودل شو.

## هم دا راز لاندې ایتونه دنو موړي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د موافقت اومنشاءسره سم نازل شوي دي:

اذا جآء هم امرٌ مِنَ الامنِ اَوِ الخَوفِ الخ (النساء : ۸۳)

۱. کَم اَخرَجکَ رَبُکَ مِن بَیتِک بالحقِ (الانفال: ۵)
۲. مَن کَانَ عَدُ وَالله وملائکَتِه وَ رُسُلِه وجبریلَ ومیکَالَ فَانَّ الله عَدُوٌ للکفرین( البقرة ۹۸مخ)
۳. یَاَیُهَا الَذِین اٰمَنُوا اِنَّمَا الخَمرُ والمیسرُ ( المائدة ۹۰)
۴. یَاَیُهَا الَذِینَ اَمَنُوا لَا تَقربُوا الصَّلٰوة وَاَنتُم سُکٰرَی( النساء: ۱۴۳)

* * *



# د ځمکې مجهولين د اسمان معروفين

عبدالرؤف حکمت

د عيدالاضحی ورځ تېره شوه.ماښام مهال چې خلکو د خوښيو په اوج کې د قربانۍ د اختر لومړۍ ورځ پای ته رسوله.د هيواد په يوه لرې پرته سيمه کې د امريکايي طاغوت بې پيلوټه الوتکې د مجاهدينو په يوه موټر د توغندي برید وکړ.

امريکايي کنترولېدونکې توغندوی په موټر ولګېد او د قربانۍ دورځې په ناوخته څلور تنه زلميان د اختر له جامو،ځلنده څنو،تورو سترګو او اختريزو ښنو سره د بارودو په لمبو کې لولپه او د شهادت په خوب ويده شول.

په هغه ورځ چې خلکو د الله تعالی حضور ته د قربانۍ وجيبه پرځای کوله،چا د پسه، چا د غوايي او چا د کوم بل حيوان په غاړه چاړه ايښې وه او د الله تعالی د رضا په خاطر يې وينه تويوله. دغو زلميانوځغه ورځ د اسمعيل عليه السلام په شان د خپلو ځانونو په قربانۍ ولمانځله، هغوی د ژوند په نوم قيمتي سرمايه د الله تعالی په لاره کې له لاسه ورکړه او په داسې ډول يې له دنيا رخصت واخيست چې بدنونه يې د بارودو په لمبو سوزيدلي او د پيژندلو وړ نه وو.

هغوی خپل شيرين د ځوانی عمرونه او نازولي بدنونه د بارودو په لمبو لولپه کړل،خو نه يې په کومې راډيو يا ټيلويزيون په اړه کوم راپور خپور کړ، نه يې نومونه نړۍ ته ښکاره او اعلام شول او نه يې کومه بله داسې نښه پاته شوه چې راتلونکي نسلونه يې وپيژني.

هوکې،زموږ تاريخ د همداسې ګمنامو اتلانو په وينو ليکل شوی دی. زموږ د فتحو بيرغونه هميشه د همداسې ګمنامو غازيانو، شهيدانو او قهرمانانو په اوږو د جبل الطارق، هماليا،البرز او ققفاز په غرونو رپيدلي دي. زموږ په تاريخ کې پيژندل شوي نومونه يوازې د څو تنو هغو قومندانانو دي چې د جګړو مشري يې کړې او په مهمو موقفونو کې پاتې شوي دي. اما هغوی چې دغه وياړمن بهير ته يې د زړه وينې ورکړې،د خپل وينو په څپو يې د باطل زور او قوت لاهو کړی او د تاريخ تر ټولو عجيبې او غريبې حماسې يې پنځولي دي. هغوی زياتره ناپيژندويه غازيان دي. راځئ دلته د مجلې دا ګڼه د همداسې ناپيژندويه قهرمانانو په ياد ښايسته کړو. هغوی چې موږ يې نه پيژنو، زموږ هير دي. مګر الله تعالی يې ډېر ښه پيژني او د دوی دسوچه او خالص عمل پاداش يې ټول د قيامت ورځې ته ورته ساتلی دی.

## د ځمکې مجهولين د آسمان مشهورين

د ځمکې له مجهولينو څخه مراد د الله تعالی هغه مخلص او بې رياء بندګان دي چې تل کوښښ کوي خپل نيک عمل د انسانانو له نظر او ځانونه له شهرت څخه پټ وساتي.ددوی معامله يوازې له الله تعالی سره وي.دوی د اخلاص رښتيني معنی

پیژندلي او عملي کړي وي. ځکه اخلاص د بندګانو له ملاحظې نه د عمل تصفیې ته وایي.

د الله تعالی ددې مخفي او مجهولو عبادت ګذارانو که څه هم په دنیا کې تعریف او یادونه نه کیږي اما د الله تعالی په نزد د هر چا په نسبت معروف او محبوب وي رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي: (إن الله یحب العبد التقي الغني الخفي) رواه مسلم. ژباړه : بې شکه الله تعالی تقوادار،غني او خفي سړی یعني چې تقوا یې پټه ساتلې وي خوښوي.

همدا شان حضرت معاذ رضی الله عنه روایت کوي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: (إن خیر عباد الله الذین إذا غابوا لم یفتقدوا وإذا حضروا لم یفطن لهم یخرجون من کل غبراء مظلمة) رواه ابن ماجه. ژباړه د الله تعالی په بندګانو کې غوره هغه کسان دي چې کله غائب شي نو څوک یې تلاش نه کوي او چې حاضر وي څوک یې درک نه کوي او له هرې تیارې او ظلمت څه وزي.

د امت لویانو او متقدمینو همیشه پردې اصرار درلود چې مؤمن باید د شهرت شوق ونه کړي بلکې په پټه دې ددین خدمت سرته ورسوي: حضرت عبدالله ابن



مسعود رضی الله عنه به خپلو ملګرو ته د نصیحت په مهال ویل: کونوا ینابیع العلم مصابیح الهدی أحلاس البیوت سرج اللیل جدد القلوب خلقان الثیاب . تعرفون في أهل السماء، وتخفون في أهل الأرض". ژباړه : شئ او له ځانه جوړ کړئ د علم چینې، د هدایت څراغونه ، د خپل کورسره ملازمین( لکه هغه فرش چې همیشه په کورکې غوړیدلی وي) او شئ لکه د شپې مشالونه چې زړونه مو نوي( ژوندي وي ) او جامې مو زړې وي د اسمان د اهل تر منځ پیژندل شوي او د ځمکې د خلکو تر منځ پټ او ناپیژوندیه یاست.

د امت متقدمینو نهایي کوښښ کاوو چې ګمنام پاته شي او په مخفي حالت کې ددین خدمت وکړي: حضرت حسین ابن علی رضی الله عنهما به د شپې په تیاره کې له کوره ووت او مسکینانو ته به یې صدقه ورکوله ترڅو ونه پیژندل شي. د لوی مصنف الماوردي په باره کې کتابونو لیکلي چې نوموړي په خپل ژوند هیڅ کتاب په خپل نوم نه و خپور کړی او غوښتل یې نوم یې پټ پاته شي خو له مرګ وروسته یې دا راز کشف شو چې نوموړی د ګڼو مشهورو کتابونو لیکوال دی. دغه راز د اسلام او دیني علومو په یونیم زرکلنه کتابخانه کې ډیر داسې تصانیف شته چې مصنفین یې نه دي پیژندل شوي. ځکه د هغه مهال په مؤمنانو کې للهیت او اخلاص خورا زیات و، پټ او په ګمنام حالت کې ددین خدمت به خوند ورکاوو او غوښتل به یې چې ټول عمل یې د الله تعالی د رضاء لپاره او په قیامت کې یې د بدلې برخه لویه شي.

خو دغسې خلک چې د اخلاص په تر ټولو لوړه مرتبه کې قرار لري. بندګان او د هغوی ترمنځ شهرت او تعارف یې نظرانداز کړی وي. دوی که څه هم په دنیا کې او د ځمکې په سر ګمنام او مجهولین بلل کیږي اما د الله تعالی په نزد مجهولین نه دي بلکې الله تعالی یې تر ټولو ښه پیژني او په هر عمل یې پوره علم لري ( فمن یعمل مثقال ذرة خیرا یره) له همدې ځایه تاریخ لیکي چې د حضرت عمر بن الخطاب رضی الله عنه په وخت کې یوه مسلمان په غزا کې لویه قهرماني وکړه، په کفارو یې جسورانه حملې وکړې او په پای کې دشهادت په مرتبه فائز شو. له غزا وروسته حضرت عمر بن الخطاب رضی الله عنه د دغه ګمنام غازي د نوم او ځای پوښتنه وکړه. خودغه ګمنام



غـازي هيڅـا نـه پيژانـد. وروسـته حضرت عمر رضی الله عنه وویـل : ما يضره ألا يعرفه عمـر ويعرفـه رب عمر. پروا يې نشته كه عمر دغه غازي نه پيژني حـال دا چې د عمر رب جل جلا له يې پيژني.

## صاحب النقب

د اســـلام علمي،جهـــادي، ثقـافتي او روحـاني تـاريخ د گمنامو اتلانـو پـه يـادونو ډک دی. هغـوی چـې ددیـن لپـاره یـې سـتر سـتر خدمتونـه کـړي. د جهـاد د اغزنـي لارې سخت مراحل يـې طی کـړي دي مگر تر شا يې کوم پـل او نښـه نه ده پرې ايښي تـر څـو يـې عمـل یوازې الله تعالی معلوم وي.

د مشت نمونه خروار په حيث به د گمنامو اتلانـو لـه جملې د هغـه نومـورکي او ناپيژندويـه اتـل يادونـه وکړو چې په تـاريخ کـې پـه صاحب النقب سره پيژندل شوی دی.

د روم د امپراطـــورۍ پـــه وړانـدې د اسـلامي فتوحـاتو پـه لـړ کې يو وخت د اسلامي لښکر مشر-محمد بن مسلمه د رومي كفـارو لـه يوې سختې او ناقابـل تسـخير كـلا سره مخـامخ شـو. مسـلمانانو دغـه قلعه محـاصره كـړه، خـو قلعـه ډيـره محكمـه وه،محكـم برجونـه او نـه ماتيدونكي دروازه يې درلوده. كه به مسلمانان نږدې ورغلل كفارو به وربانـدې د غشـو بـاران پيـل كـړ نـو ځكـه دغـې كـلا د مسلمانانو د پرمختگ مخه ونيوله.

كله چې ددغې سترې كلا فتحه وځنډيـده او د مسـلمانانو بريـدونو وربانـدې هـيڅ نتيجه نه درلوده. يوه شپه د اسلامي لښكر لـه يـوه ناپيژندويـه مجاهـد سره فكـر پيـدا شو، چې كه دغې كلا ته د ځمكې لاندې تونل ووهل شي او بيا چـې كلـه مسـلمانان پـه كلا يرغل كوي د همدې تونل د لارې يو كس د كلا داخل ته د دروازې له خوا سره ځای ته ځان وباسي او د كلا لويه دروازه دمسلمانانو په مخ خلاصـه كـړي كيـدای شي دغـه كلا فتحه شي.

همدغه كس به په يوازې ځان هره شپه تلو او د دروازې له خـوا سره پـه تونـل بـه يې په پټه كار كاوو تر دې چې دڅو شپو په ترڅ كې يې د كلا داخل تـه تونـل ورسـاوو. بله ورځ چې مجاهدينو په كلا يرغل وكړ نو لوی شمير مجاهدين د دروازې لـه خـوا سره راټول و چې كه په ديوالونو واوړي او دروازه خلاصه كړي.خو د كفارو غشـو ددوی مخـه ډب كړې وه. دغه وخت همدا ناپيژندويه مجاهد په تونل ننوت د كلا داخل ته يـې ځـان ورساوو او په پوره جـرأت يـې د كـلا لويـه دروازه د شا لخـوا خلاصـه كـړه. پـه دې سره مجاهدينو په خلاصې دروازې هجوم وروړ د كلا منځ ته ننوتل او څو شـيبې وروسـته د نه ماتيـدونكي كـلا لـه برجونـو د تكبيـر غږونـه پورتـه شـول او د اسلام د فتحـې بيـرغ وربانـدې رپاند شو.

مسلمان سرلښكر محمد بن مسلمه چې كله په دې ډول د كلا په فتحه وتوانېد نـو له جگړې وروسـته يـې غوښـتنه وكـړه چـې تونـل وهـونكي مجاهـد دې ورتـه راوسـتل شي.نوموړي خپل ټول لښكر راغونډ كړ او اعلان يې وكړ هـر چا چـې تونـل وهلـی او د كلا دروازه يې خلاصه كړې ځان دې راوپيژني چې زه ورتـه انعـام وركـړم. مگـر پـه ټـول لښكر كې هيڅوک هم رامخكې نه شو.

محمد بن مسلمه سبا بيا همداسې اعلان وكړ مگر هيڅوک رامخكې نه شو او نـه يې ځان وښود.تر دريو ورځو پورې محمد بن مسلمه همدا اعلان كـاوو او كوښـښ يـې كاوو چې صاحب النقب يا د تونل والا مجاهد پيدا كړي. مگر د صاحب النقب درک ورک و او هيڅا نه پيژاند. په دريمه ورځ محمد بن مسلمه قسم ياد كړ او ويې ويـل: زما دې قسم په الله تعالی وي چې صاحب النقب چې هرڅوک وي ماته بـه راځـي كـه پـه شـپه راځي يا په ورځ هر وخت چې يي خوښه وي خو يوځل به له ماسرهويني.

بله شپه چې محمد بن مسلمه په خپله خيمه كې يوازې ناست و په توره تياره كـې ورته يو تن راغی چې مول يې وهلی او خپله څيره يې پټه كړې وه.محمد بن مسـلمه لـه

راغلي تن څخه پوښتل : ته څوک یې آیا صاحب النقب یا هغه څوک چې تونل یې وهلی هغه تن خو به نه یې؟

راغلي تن ځواب ورکړ: صاحب النقب نه غواړي چې د لښکر امیر په خپل قسم کې حانث شي نو ځکه غواړي له تاسو سره ووینې مګر د هغه څو شرطونه دي که تاسو یې ومنئ. محمد بن مسلمه وویل: شرطونه یې څه دي؟ راغلي تن وویل : دا چې له هغه نه به د نوم او نور تعارف پوښتنه نه کوئ.د هغه مخ به وربانډې نه لوڅوئ او هغه ته به هیڅ جائزه یا انعام نه ورانډې کوئ. محمد بن مسلمه دا شرطونه ومنل او بیا راغلي تن وویل :زه صاحب النقب یم. او له دې ویلو وروسته په چټکو ګامونو د امیر له خیمې ووت او د لښکر تر منځ د شپې په تیارو کې غیب شو.

محمد بن مسلمه چې ددې مجاهد بې ریا او مخلصانه عمل ورته ډیر خوند ورکړی و همیشه به یې په دعاء کې ویل : اللهم احشرني مع صاحب النقب. اې خدایه ما له صاحب النقب سره راپاڅاوه.

د پای خبره

مجهولیت او عدم تعارف د یوه مسلمان لپاره لوی نعمت دی.موږ که د امت د بزرګانو سوانح وګورو هغوی همیشه هڅه کړې چې خپلې نیکۍ پټې وساتي او د یوه عادي انسان په شان ژوند وکړي.

یوه ورځ عبدالله ابن مسعود صاحب له کوره راووت او تر شا ډیر کسان پسې روان ول. ده ورته وویل: علام تتبعوني؟ ارجعوا، فإنه ذلة للتابع وفتنة للمتبوع.ولې راپسې روان یاست بیرته وګرځئ ځکه دغسې د یوچا بدرګه کول د بدرګه کوونکي لپاره ذلت او د بدرګه شوي لپاره فتنه ده.

امام رباني مجدد الف ثاني رحمه الله فرمایلي دي چې: شهرت آفت است.یعني شهرت آفت دی. نن سبا په دنیا کې نااهله او نا خبره انسانان ډیرې پیسې په دې مصرفوي او ډیر اعمال ددې لپاره کوي چې ځان مشهور کړي.خو دغه عمل که څه هم دنیاوي لذت به ولري خو په قیامت کې د انسان لپاره د هلاکت سبب او دوزخ ته د دخول سبب ګرځیدلی شي. ځکه شهرت غوښتونکي کسان که نیک کارونه هم کوي نو د هغوی بدله یعني مشهورتیا په دنیا کې ورکول کیږي نو ځکه به یې د آخرت برخه خواره وي.

اما که څوک په دنیا کې د الله تعالی د رضا لپاره جهاد، علم،سخاوت، دعوت او نور دیني کارونه کوي. د شهرت تمه او شوق یې نه وي مګر خودبخوده په خلکو کې مشهور شي او خلک یې صفتونه کوي.دغه کار کوم ناوړه او خطرناک کار نه بلکې د الله تعالی لخوا بنده ته د نیک عمل یو عاجل او دنیوي بدل دی چې دده د اخرت اجر وربانډې نه کمیږي لکه په حدیث شریف کې چې ورته اشاره شوې ده. عن أبي ذرّ رضي الله عنه: قيل يا رسول الله أرأيتَ الرجلَ يعمل العمل من الخير ويحْمَدُهُ الناس عليه؟ فقال : (تلك عاجل بشرى المؤمن) حضرت ابي ذر رضی الله عنه روایت کوي چې یو چا له رسول الله صلی الله علیه وسلم نه پوښتنه وکړه چې ماته خبرراکړه که څوک یو نیک کار کوي او بیا یې خلک صفت کوي دا څنګه دی؟ رسول الله صلی الله علیه وسلم وویل: داد مؤمن لپاره عاجل بشارت دی چې په دنیا کې ورته رسیږي.

نو راځئ دعاء وکړو چې الله تعالی مو له ګمنامو عابدینو،مجاهدینو او ددین د خادمینو څخه حساب کړي او د ریاء او سمعت شوق مو دې الله تعالی په خپل قدرت سره له زړونو او فکرونو وباسي.

اللهم انا نعوذبک من أن نشرک بک شیئا نعلمه و نستغفرک لما لا نعلمه. آمین یا رب العلمین



# د افغانستان احمقانه جنګ

لیکوال : اریک مارګولیس
ژباړن : نثار احمد صمد واصفي

پنځلس کاله مخکې همدا هفته امریکا د خپل تاریخ تر ټولو اوږده جګړه راپیل کړه چې هغه د لیري پروت افغانستان یرغل او نیول وو .ګاونډۍ پاکستان مجبور کړای سو چې د امریکا دغه یرغل ته آسانتیاوې برابري کړي یا دا چې په بم وریو سره به یې هوار کړي.

امریکا د سپټمبر د یوولسمې د وینړۍ حملې له امله سخته خښمېدلې وه .د بوش حکومت په پیره کې بیده سوی و . ډېرۍ امریکایان په دې فکر دي چې د سپټمبر د یوولسمې حمله د جنګ طلبه نوو محافظه کارانو لخوا یوه جوړه سوېداخلي طرح وه . افغانستان یې د امریکا د انتقام یو هدف وټاکی سره له دې چې د سپټمبر د یوولسمې حمله ( که رښتیا هم له بهره سوې وی ) په جرمني او هسپانیه کې طرح سوې وه . ځان مرګې بریدګرو خپل دغه له سره تیر مأموریت داسې اعلان کړ چې غواړي په دې توګه امریکا ته د سعودي عربستان د سپیځلو سیمو د نیولو او هم د اسراییلو لخوا د فلسطین د اشغال څخه د واشنګټن د څرګند ملاتړ سزا ورکړي.

دغه منطقي او مستدله څرګندونه ډېر ژر د بوش د حکومت لخوا پټه کړای سوه اوادعا یې وکړه چې د سپټمبر د یوولسمې بریدګر ، چې اکثریت یې سعودیان وو ، د امریکا « ارزښتونو » او « آزادیو » لمسولي وو .همدغه نامعقولیت د اسلام دښمنۍ هغه تخم وکرئ چې همدا نن یې موږ وینو او « د ترور پر ضد یې درواغجن جنګ » رامنځته کړ.

یو کمونیستي ضد جهادي اسامه بن لادن یې د امریکا له پاره د یو ستر شیطان په حیث وپرساوه او بدنامه یې کړ . په افغانستان کې « د تروریستانو د روزنې ګوماني کمپونه » چې ما په خپلو سترګو لیدلي وو ، د پاکستاني استخباراتو لخوا د روزل سوو جهادیانو له پاره وو چې د هند تر اشغال لاندې کشمیر کې جنګېدل.

لیرې پروت ، غم لړلی او غرنی افغانستان په حقه « د امپراتوریو قبرستان » بلل سوی دی . هغوی عبارت وو د لوی سکندر ، چنګیز خان ، تیمور ، مغولو او سیکانو څخه . برتانوي امپراتورۍ په نولسمه پیړۍ کې پر افغانستان درې ځله تیری کړی و . شوروي اتحاد ، یعنې د نړۍ تر ټولو ستر ځمکني طاقت په ۱۹۷۹ کې پر دې هیواد یرغل وکړ چې هدف یې په عربي سمندرګي او خلیج کې د یو ګودر لرل وو . دا ټول د هندوکش د زیږو پښتني جنګیالیو اقوامو لخوا مات سوي دي.

خو احمق جورج بوش پر دغه هیواد باندې چې ملایکې هم پکښې بیریږي ، په عبث ډول ودانګل تر څو هغه تسخیر نه منونکي خلک فتح کړي چې جنګ د هغوی د خوښې وړ مشغله ده.

زه د هغو افغان مجاهدینو سره مل وم چې په ۱۹۸۰ لسیزه کې د شوروي نیونې پر ضد جنګېدل ، او بیا د ۱۹۹۰ لسیزې په لومړیو کې د نوو رامنځته سوو طالبانو سره هم وم . لکه څنګه چې ما په خپل هغه کتاب کې چې په همدې باره کې دی او عنوان یې« جنګ د نړۍ پر بام » دی ، هم لیکلی دي چې پښتانه جنګیالي تر ټولو هغو زړه ور دي چې ما تر ننه لیدلي دي . دوی تل ډېری پخوانۍ وسلې لرلې دي خو جرأت او زړه ورتوب یې له حده وتلی دی.

په ۲۰۰۱ کې د امریکا د یرغل پر مهال د امریکې ملګري پخپله د شمال ایتلاف د هیرویینو او تریاکو تاجک کاروباریان ، د شورویانو پخواني

کمونیستې ملګري او د شمال ازبکان وو چې د پښتنو د وینو تږي وو.

طالبانو ، چې د سپټمبر د یوولسمې په حمله خبر هم نه وو ، د افغانستان د هیروئینو او تریاکو ۹۰ سلنه کاروبار بند او ختم کړ . خو د امریکا ملګرو یعنې د شمال ایتلاف هغه بیرته راپیل کړ او افغانستان یې یو ځل بیا د نړۍ د هیروئینو او تریاکو تر ټولو لوی تهیه کونکی ثابت کړ.

د امریکا اشغالي ځواکونه ، د یو ستر تاکتیکي هوایي ځواک په ملاتړ په افغانستان کې پخپله د خورا جنایت کارو عناصرو سره ملګري سول او د سي آی اې د ګومارلو یو ګوډاګي رژیم یې نصب کړ.

سي آی اې پخواني کمونیستې استخباراتي عناصر ، چې په شکنجو او سختو ظلمونو کې تاریخي ریکارډ لري ، پر قدرت راوستل تر خو د طالبانو سره وجنګیږي.

تیره اوونۍ د افغانستان له پاره د واشنګټن د مرستو خاص تفتیش یو بالکل غوځ راپور خپور کړ چې هغه دا وښودل چې څنګه عامه فساد ، رشوت ، معاوضه پیسو او مخدره ییزه روپیو د یوې دوامداره افغاني ټولنې په جوړولو کې د امریکا هڅیله مځکې وهلې دي.

دا لا څه ، که د امریکا څلیرویشت ساعته هوایي حملې نه وای ، نو په کابل کې به لاس کښېنولي افراد خورا ژر جارو کړای سوي وای . افغان اردو او پولیس رژیم ته وفاداره نه دي ؛ هغوی یوازې د امریکایي ډالرو له پاره جنګیږي . کابل هم د بغداد غوندې د دښمنیو په سمندر کې د امریکا تر سیوری او ساتنې لاندې یوه ټاپو ده.

د نړیوالې څېړنې ( ګلوبل ریسرچ ) د راپور له مخې دغه پنځلس کلن افغان جنګ او عراقي جګړه امریکا ته په شپږ ټریلیونه ډالره تمامې سوي دي .د تعجب یوه کوچنۍ بیلګه یې لا دا چې د پاکستان د ساحل څخه افغانستان ته د تیلو رسولو یو ګیلن پنتاګون ته په څلور سوه ډالره تمام سوی دی.

د ځینو اټکلونو او ارزونو له مخې دغه جنګ د هر امریکایي له پاره په ۳۳۰۰۰ ډالرو تمام سوی دی ، خو امریکایان دغه پیسې د یو خاص جنګي ټکس ( مالیې ) په توګه نه ورکوی ،حال دا چې باید همداسې وای . خو بوش امر وکړ چې د عراق او افغانستان د جګړو ټول مصارف دې په ملي پور کې پټ کړای سي.

په افغانستان کې په رسمي توګه ۲۲۱۶ امریکایي پوځیان وژل سوي او ۲۰۰۴۹ هم سخت ټپیان سوي دي . نور ۱۱۷۳ غیر پوځي امریکایي ګومارلیهم وژل سوي دي . لا اوس هم یو زیات شمیر په پیسو استخدام سوي امریکایي ګومارلي په افغانستان او عراق کې پاته دي.

د نوبل د سولې د جایزې ګټونکي بارک اوباما ژمنه کړې وه چې تقریباً ټول امریکایي پوځیان به تر ۲۰۱٦ پورې د افغانستان څخه راباسي .خو د دې برعکس نور امریکایي پوځیان ورلیږل کیږي تر څو د کابل ګوډاګي رژیم د خپلو خلکو څخه وساتي.

د طالبانو او د هغوی د محدودو ملګرو مقاومتي غورځنګ ( چې امریکایي خپرونې یې د پنتاګون د خولې په پښو سره تروریستان بولي ) مسلسل سیمې نیسي او افراد یې ډیریږي.

تیره اوونۍ د امریکا د سپور پوځ یعنې ناټو او نورو مأدون دولتونو اړونده د افغانستان له پاره د بسپنو داوطلبانه کنفرانس دې ته اړیستل سو چې نور ۱۵،۲ بلیونه ډالره ورکړي او احتمالاً نور پوځیان هم دغه نا امید کونکي جنګ ته ولیږي.

د امریکا نفس دا نه قبلوي چې د کوچني او کمزوره افغانستان لخوا ماتې ومني او یا هم دغه ستراتیژیکي هیواد د چین په نفوذي ساحه کې ولویږي.

امریکا په شوم ډول هند هڅوي چې په افغانستان کې ښه ډیر او پراخ رول ولوبوي چې په دې سره دلتهد پاکستاني ـ هندوستاني ـ چینایي ډغرو او شخړو خطرناکه تخمکري.

خو د کنفرانس په دغه سالون کې د غټې تورې بیزو یادونه ونسوه چې هماغه د امریکا د حکومت تر سیوری او ننګې لاندې په نړۍ کې د هیروئینو ، تاریاکو او مورفینو تر ټولو ستر تولیدونکي هیواد یعنې افغانستان رول دی.

هو ، د امریکا را روان نوی ولسمشر به د دغه شرمناک مشکل وارث وی .

# د امریکایي یرغل

## په وړاندې زمونږ مسوولیت څه دی؟

# محمد جواد

نن تېره ورځ په ډېر جرءت او مېړانه سره د اسیا او افغانستان په زړه (کابل) کې د ۷م اکتوبر هغه ، له ظلم ډک، وحشي- تور کرغېړن، ناروا تېری وغندل شو او تل لپاره به یې موږ افغان مؤمن مسلمان ولس په سختو ټکو غندو، چې له امله یې زموږ مؤمن مظلوم ولس څخه د ارامی، وروروله، سوکاله، متحد، اطمناني ژوند واخیست!!

له کومې ورځې، چې امریکایي وحشي- صفته حکومت زموږ په سپېڅلي حریم او خاوره تجاوز کړی له هم هغې شپې، ورځې نه د بشردوستی او امن ترعنوان لاندې په مسلسل ډول مو وره، ستر نر، ښځه، سپین ږیري په بې رحمانه ډول وژل کیږي دا خو لا پریږده، د مور او میندو په ګېډه کې له نړۍ ناخبره نالیدلي معصوم ماشومان مو هم له ورته خطر سره مخ او وژل کیږي!!!

که د اسلامي شریعت او انساني عقل او حقیقت له مخې ځېر شو، نو دا به معلومه ،ثابته شي، چې د نړۍ امن او انسانیت چاه له ګواښ او خطر سره مخ کړی، موږ افغانانو او که امریکایانو؟؟

جواب: په حقیقت کې که صادقانه یو طرفه قضاوت وشي ، انسان خو لاپریږده هوایي، سمندري او ځمکني حیوانات مرغان، ماهیان به هم پدې اعتراف وکړي چې موږ له امریکایي شیطاني او دجالي لښکر نه بې امنه او خطر کې یو!!!

راځئ د افغانستان مظلوم بې دفاع مؤمن ولسه چې خپل اسلامي، افغاني او انساني سالم فکر او عقل له مخې دوست او دښمن درک او وپیژنو او بیا چې کوم اسلامي، افغاني انساني مسؤولیتونه چې نن راته متوجې او پرې مکلف یو د هغه په سرته رسولو کې یې یو بل ته د تعاون، وحدت ،اخوت او مینې لاس ورکړو، ترڅو له داسې ناوړه ظلم، وحشت، غلامۍ نه خلاصون، نجات ترلاسه کړو او پرځای خپلواک، متحد، ازاد او شرعي ، ملي ژوند او نظام رامنځ ته کړو ، یو بل ته له انتقام، ضدیت، تعصب او له ناوړه شخصي- دښمنۍ څخه لاس واخلو او لکه څرنګه چې مؤمنان او مسلمانان یو، همداسې باید ریښتوني مخلص خپل شرعي حکم او قانون ته تسلیم شو، ترڅو په ورځ دې محشر- رب العالمین ته شرمینده او رسوا نشو او هغه څه وکړو چې پرې مکلف او مسؤول ګڼل کیږو او له تېر ماضي موجوده نه لوی عبرت او پند واخلو. الله عزوجل دې وکړي چې نور الله عزوجل او حق ته تسلیم شوو.

د اسلام او د وطن ازادۍ، خپلواکۍ دیو با امنه شرعي ملي نظام په هیله.






# د علم او جهاد د سنګر له خادم

# شیخ الحدیث مولوي ندا محمد ندیم صاحب سره مرکه

# مرکه کوونکی: أبوعابد

**پوښتنه**

محترم شیخ صاحب! تاسو ته ښه راغلاست وایو او مرکې ته له امادګۍ څخه مو مننه دوی یو که له هرڅه مخکې که زموږ لوستونکو ته ځان معرفي کړئ مهرباني به مو وي.

**ځواب**

الحمد لله رب العالمین والصلاة والسلام علی إمام المجاهدین المبعوث رحمة للعالمین نبینا محمد صلی الله علیه وسلم وعلی آله وأصحابه والتابعین ومن تبعهم بإحسان إلی یوم الدین ، امابعد :

زما نوم مولوي ندامحمد ندیم د کندهار ولایت اوسېدونکی د نظامي چارو کمېسیون د شمال لوېدیځ زون د حلقې مسئول یم .

**پوښتنه**

ستاسو د مسؤلیت په مربوطو ولایاتو کې د موجوده جهادي وضعیت په اړه که معلومات راکړئ.

د هر ولایت لنډ جاج چې څومره ساحات یې د مجاهدینو په ولکه کې دي او څومره ددښمن. د مجاهدینو قوت څومره دی.له امارت سره وفاداري او خپل منځي اتحاد په باره کې معلومات راسره شریک کړئ؟

**ځواب**

د شمال لوېدیځ زون د حلقې اړوند ولایتونه له فاریاب ، بادغیس ، جوزجان ، سرپل او غور څخه عبارت دي ، په مجموعي ډول د دغو ولایاتو په اکثرو سیمو کې د اسلامي امارت حاکمیت ټینګ دی او دلته مسلمان اولس د امن او د شرعي نظام په سیوري کې له سوکاله ژوند څخه برخمن دی .

ددې لپاره چې د حلقې د اړوندو ولایاتو د جهادي وضعیت انځور مو په سم ډول وړاندي کړی وي د هر ولایت معلومات په خلاصه ډول وړاندي کوو :

فاریاب : په فاریاب ولایت کې د خواجه ناموسی او خیبر ولسوالی په بشپړ ډول د مجاهدینو په واک کې دي او د پښتونکوټ ، جمعه بازار ، شیرین تګاب ، دولت آباد ، لولاش ، بندر او المار ولسوالیو یوازي مراکز له دښمن سره دي او له مرکزي ودانی پرته نوري ټولي سیمي د مجاهدینو په کنترول کې دي ، د قیصار او چهلګزي ولسوالیو له نیمایي زیاته برخه د مجاهدینو او پاته د اجیري اداري په کنترول کې ده او د اندخوی ، بلچراغ او ګرزیوان په ځینو سیمو کې مجاهدین واکمن دي او هلته خوځنده جهادي تحرکات لري .

په مجموعي ډول په فاریاب ولایت کې مجاهدین الحمدلله د لوړ مورال په لرلو سره په قوت کې دي او دښمن د سختي وارخطایي له امله یوازي د ځان د دفاع په فکر کې دی ، د فاریاب ولایت مرکز میمنه ښار له تېر کال راهیسي کله چې د خواجه ناموسی ولسوالي په بشپړ ډول فتحه سول د مجاهدینو تر دوامداره ګزار او تهدید لاندي دی او که د الله جل





جلاله مرسته وه د میمنې ښار فتحه کول به مجاهدینو ته ډېر گران کار نه وي ، په فارياب ولايت کې اوسمهال د ۴۰۰۰ په شاوخوا کې فعال مسلح مجاهدین په خدمت بوخت دي چې له ازبکو ، پښتنو ، تاجکو ، ترکمنو او عربو قومونو څخه تشکيل شويدي .

بادغیس : د بادغیس ولایت تگاب عالم ولسوالي په بشپړه ډول د مجاهدینو په واک کې ده ، د بالامرغاب ، دره بوم او جوند ولسواليو يوازې مرکزي ودانۍ له دښمن سره دي نوري ټولي سيمي يې د مجاهدينو په واک کې دي، د دغه ولايت د نورو ولسواليو اکثره سيمي له مجاهدينو سره دي او د گېزو ولسواليو لاري د مجاهدينو له لوري تړل شويدي ، دښمن اکثرو ولسواليو ته د هوا له لاري اکمالات کوي ، غورماچ ولسوالي چې له ډېره وخته د مجاهدينو تر محاصرې لاندې وه ( همدا نن چې ستاسو سره مرکه کوو ) د مجاهدينو تر بريدونو لاندې نيول شوې اميد سته چې الله تعالی به يې مجاهدينو فتح ورنصيب کړي ، په بادغيس ولايت کې د ۶۰۰۰ په شاوخوا کې مجاهدين په جهادي خدمت بوخت دي.

سرپل : د سرپل ولايت کوهستانات ، شِرم ، الفتح او البدر ولسوالی په بشپړ ډول د مجاهدينو په ولکه کې دي ( بايد وواييو چې الفتح او البدر ولسوالی چې مخکې د کوهستانات ولسوالی برخې وې د اسلامي امارت له لوري د ملکي اړتياوو او نظامي ملحوظاتو په نظر کې نيولو سره نوي تأسيس شوي دي ) د دغه ولايت د نورو ولسواليو يا يوازې مراکز او يا هم د مراکزو په گډون ډېري کمې سيمي له دښمن سره دي پاتې ټولي سيمي يې د مجاهدينو تر واک لاندې دي ، ددغه ولايت مرکز هم د مجاهدينو تر څار لاندې دي او د مرکز اکثره سيمي يې د مجاهدينو په لاس کې دي ، په سرپل ولايت کې د ۲۰۰۰ په شاوخوا کې فعال مسلح مجاهدين حضور لري .

جوزجان : که څه هم د سږ کال په جريان کې د دوستم د زرگونو گلم جم ملېشو روزمره تحرکاتو او فوځي عملياتو د جوزجان ولايت د مجاهدينو د پرمختگ مخ ډب کړېوه خو مجاهدينو نه يوازي داچې د قوشتېپې او درزآب ولسواليو له مراکزو پرته ټولي سيمي يې په خپل کنټرول کې وساتلې بلکه ددغه ولايت په نورو ولسواليو کې يې هم وحشي دښمن ته د چريکي حملو په ترڅ کې پراخه مرگ ژوبله ور واړول ، د قوشتېپې او درزآب ولسواليو مراکز همدا اوس د مجاهدينو تر محاصرې لاندې دي او د فتح کېدلو ډېر اميد يې لرو، په جوزجان ولايت کې د ۲۰۰۰ په شاوخوا کې مسلح مجاهدين په جهاد بوخت دي .

غور : د غور ولايت مرغاب ولسوالي په پشپړ ډول د مجاهدينو په ولکه کې ده ، په نورو ولسواليو کې مجاهدين فعال حضور لري او د اکثرو ولسواليو يوازې مراکز له دښمن سره دي ، په غور ولايت کې د ۲۰۰۰ په شاوخوا کې مجاهدين د اسلامي امارت په ليکو کې جنگېږي .

د حلقې د اړوندو ولاياتو مجاهدين الحمدلله په پوره اتحاد سره سپېڅلي جهادي دنده مخته وړي او هيڅ ډول قومي ، ژبني او سمتي اختلاف يو له بل سره نلري ، له مسئولينو نيولې تر عامو مجاهدينو پوري مکمل د اسلامي امارت په اطاعت کې دي او چې امارت کوم څوک د مسئول په توگه ورته ټاکي ټول يې اطاعت پر ځان لازم بولي ، همدا اوس د فارياب ولايت والی د سرپل ولايت اوسېدونکی په قوم تاجک دی ، مرستيال يې پښتون او د ولايتي کمېسيون مسئول يې ازبک دی ، دوی د فارياب اوسېدونکي دي ، په ټول فارياب کې له يوه عادي مجاهد څخه به هم وا نه ورې چې ولي مو دا مسئولين راته ټاکلي دي ، همدا ډول د غور ولايت والي د هلمند ولايت اوسېدونکی او د بادغيس ولايت والي د دايکندي ولايت اوسېدونکی دی ، د حلقې په ولاياتو کې د مجاهدينو تر منځ د همکارۍ ، يو له بل سره د مرستي او محبت په اړه به د مثال په ډول وواييم چې د تېر په څېر سږ کال هم د بادغيس ولايت مجاهدينو په فارياب کې له مجاهدينو سره په گډه عمليات وکړل او د فارياب ، بادغيس او سرپل مجاهدينو په غور کې د غور له مجاهدينو سره يو ځاي په پوره هماهنگۍ جهادي عمليات تر سره کړل ، د

مجاهدينو د فوځي روزني او تسليحاتي اكمال په برخه كې الحمدالله ښه پرمختگ سوی دی ، يوازې د فارياب ولايت له معسكر څخه پدې وروستيو كې لسگونه تنه مجاهدين فارغ شوي دي ، د حلقې د اړوندو ولاياتو مجاهدين د جگړې لپاره همدا اوس ۲۰ عرادې زغره والي شوبلې او ٦٠ عرادې رېنجر موټران لري ، د گڼو فتوحاتو او له دښمن څخه د زياتو غنائمو نيولو په سبب اوس الحمدلله تر ډېره مجاهدين خودكفاء شوي او د ضرورت په اندازه ثقيله اسلحه لري ، د مثال په ډول په سرپل ولايت كې دوه كاله مخكې مجاهدينو يوه دهشكه هم نه درلوده خو اوس الحمدلله لس ميله فعالي دهشكې لري .

## پوښتنه

ستاسو د مسؤليت په مربوطو ولاياتو كې له امارت سره ولسي-ملاتړ څومره دی؟ كه له مجاهدينو او امارت سره د اولسي-ملاتړ ځينې مثالونه راسره شريک كړئ؟

## ځواب

د حلقې په مربوطه ولايتونو كې الحمدالله له مجاهدينو سره سل په سلو كې اولسي ملاتړ موجود دی ، ددغو سيمو خلک مجاهدين خپل مُحسنان بولي ، دغه خلک مخكنيو زورواكو ، غلو ، ټوپكيانو او نورو وحشي ملېشو سخت ځورولي وه ، ددوی مال او ځان ددوی په اختيار كې نه وو ، ظالمانه باجونه يې ورڅخه اخيستل او كه به يې وواړه د پوښتنې څوک يې نه وو ، د اسلامي امارت مجاهدين دوی ته د نجات د فرشتو په شان دي ، د مجاهدينو د حاكميت په ساحو كې دوی عزتمن ژوند لري ، اسلامي محاكم يې ټولي دعواوي ورفيصله كوي ، شكايات يې اورېدل كېږي او له خپلو ټولو اسلامي او انساني حقوقو څخه برخمن دي .

د اسلامي امارت له مجاهدينو سره يې هره مرسته او همكاري د مثال وړ ده ، خو په لاندې ډول يې دوه مثالونه وړاندې كوو :

تقريباً يوه نيمه مياشت مخكې د بادغيس ولايت په بالامرغاب ولسوالۍ كې له دښمن سره سخته جگړه وسوه ، ددغې جگړې په جريان كې د سيمې خلكو په خپلو كورونو كې پسونه حلال كړيوه او ښه سم يې پخ كړيوه او بيا يې د مجاهدينو سنگرونو ته راوړل ، د جگړې په سختو شېبو كې يې مجاهدينو ته ډوډۍ او غوښې ورسولې ، د مرميو په باران كې مجاهدينو ته ډوډۍ رسول تاسو خپله اندازه كړئ چې اولس له مجاهدينو سره څومره مينه لري ؟

د فارياب ولايت په گرزيوان ولسوالۍ كې د روژې په مياشت كې سختې جگړې وسوې چې په ترڅ كې يې درې تنه قهرمان مجاهدين شهيدان سول ، كله چې زه د شهيدانو د كتلو لپاره راغلم نو د سيمې گڼ شمېر علماء او سپين ږيري هم د شهيدانو ليدنې ته راغلي وه ، ما چې كله د شهيدانو له مخونو څادرونه پورته كړل او موږ د شهيدانو مخونه وليدل د ټولو له سترگو اوښكې رواني وي ، د سيمې علماوو او سپين ږيرو دومره وژړل لكه د خپلو اولادونو پر مرگ چې ژاړي .

ددې ترڅنگ د اكثرو سيمو خلكو د خپلو سيمو مجاهدينو ته اسلحې ور رانيولي او په خپله خوښه يې ناوخته ناوخته اكمال هم كوي ، د حلقې په ټولو ولاياتو كې مو دا ليدلي چې كله جگړه پيل سي د سيمې ټول خلک په خدمت كې وي ، كه په جگړه زخمي پېښې سي ډاكټران يې خدمت خپل فرض بولي كه د شهيدانو د انتقال ضرورت وي خلک خپل موټران په خپله خوښه د مجاهدينو خدمت ته وړاندې كوي .

## پوښتنه

د عمري عملياتو په لړ كې يا له سږ كال پسرلي را پديخوا په دې ولاياتو كې كوم پرمختگونه شوي دي كه يې په اړه معلومات راكړئ؟

## ځواب

د عمري عملياتو له پيله تر اوسه الحمدلله د حلقې د اړوندو ولاياتو مجاهدينو گڼ پرمختگونه كړي چې په ترڅ كې يې پراخي سيمې له دښمن څخه تصفيه كړي او گڼه



مـرگ ژوبلـه یـې ور اړولـې ده ، پـه لاندې ډول د هغو سیمو نومونـه ذکـر کوو چې د عملیاتو په لړ کې تر اوسه مجاهدینو له دښمن څخه نیـولي دي :

فاریـاب : د قیصـار ولسوالۍ د خواجــه ذات خـــوان ، ارکلیـــک و زعفـران ، بیـدکي ، چکنـک ، جیره غار، طرقچي بالا و پایـان ، امبگـي ، چکنه ، آقمـس ، بوره غـان او طوی مســت ســیمي ، د پښـــتونکوټ ولسوالۍ د خورترک ، د څو کلیـو پــه شـمول تـېلان او غنـډه سـنگ سیمې ، د گرزیـوان ولسوالۍ د گنج او تگـاب ایشـان سـیمې ، د شـیرین تگاب ولسوالۍ د استانه بابا پراخـه ســیمه ، د لـــولاش ولـــسوالۍ د قـدوق او شـوره سـیمې ، د بنـدر ولسوالۍ د نهستان سـیمه ، د بلچـراغ ولســوالۍ د کتــه تــاش اوکارخانــه سیمې ، د جمعه بازار ولسوالۍ د کله کلان ، قره شیخي او خواجـه قشري سیمې او د المـار ولسوالۍ د قرایـي پراخه سیمه ( د قرایي پراخـه سیمه د اولـــس د اړتیـــاوو او د نظـــامي ملحوظـاتو پـه نظـر کـي نیولـو سره د اسلامي امارت له لوري د خیبر په نوم مستقله ولسوالي اعلان کړل سـول ) ، په پورته مفتوحه سیمو کـي اکـثره لـه مجاهـدینو سره دي او لـه ځینـو یـې مجاهدینو بیرته عقب نیشیني کړېده .

بادغیس : په قادس ولسوالی کي د غیب علي او لوگر سیمي ، په جوند ولسوالی کـي له اربکیانو څخه د کوریج په سیمه کې د بدلنه کلي تصـفیه ، پـه غورمـاچ ولسوالی کـي دمستوخېلو سیمه ، په آب کمري ولسوالی کـي لـه اربکیـانو د سـینه اردو د سـیمي د لسـو کلیو تصفیه او په مرغاب ولسوالی کي د اکازو د پراخي سیمي تصفیه .

سرپل : په سـنگچارک ولسوالی کـي دمسـجد سبز او توپخانې سـیمي ، د تاغـای خواجه او تبر مهمي سـیمي او د گجـوا مهمـه سیمه او پـه سـوزمه قلعـه ولسـوالی کـي د چاریک ، تنزیل ، گورکاب او دوو نورو سیمو تصفیه .

جوزجان : په فیض آباد ولسوالی کي لـه اربکیـانو دگرجـک دمهـم او سـتراتیژیک کلي تصفیه او د ولسوالی اړوند د نورو ۱٦ مهمو کلیو تصفیه ، پـه قوشـتېپه ولسـوالی کـي د شبر بېگ او نورو پراخو سیمو تصفیه ، په خانقـاه ولسـوالی کـي لـه اربکیـانو د لسـو کلیـو تصفیه او اوس تازه د قوشتیپې ولسوالی چقمه چقور سیمه او د کلان کلا لـوی کلـی فتحـه کېدل .

غور : په شینکوټ ولسوالی کـي د سـختو جگـړو پـه تـرڅ کـي دلویـو سـیمو فـتح ، دساغر ولسوالی په لوړ طرف کي د پراخي سیمي فتح او له اسلامي امـارت څخـه د ملاتـړ په ترڅ کي د چخچـران او چهارصـدې ولسـوالیو د سـومک او فلاخـر پراخـي سـیمي او د شهرک ولسوالی یوه پراخه سیمه د مجاهدینو تر واک لاندي راتلل .

د پورته ذکر شویو سیمو له نیولو سربېره مجاهـدینو د عمـري عملیـاتو پـه تـرڅ کـي لسگونه پوستې او نظامي مراکز هم فتح کړي او سلگونه دښمنان یې مړه او ژوبل کړیـدي ، همدارنگه ددغو عملیاتو په ترڅ کي مجاهدینو ددښمن گڼ شـمېر نظـامي عـراده جـات او ډول ډول وسلې او مهمات هم غنیمت کړیدي .

## پوښتنه

جنرال دوستم تېر کال او د سږکال په اوږدو کې بیا بیا د فاریاب، جوزجان او سرپـل ساحو ته پوځي قوې ورووستلې او د مجاهـدینو د ځپلو ادعـاء یـې وکـړه. کـه د نومـوړي د ادعاوو په اړه معلومات راکړئ چې آیا ربښتیا یې لاسته راوړنه درلوده او که د مجاهـدینو پـه وړاندې یې شکست وخوړ.

## ځواب

تاسو ته معلومه ده چي الحمـدلله دوسـتم د تېرکـال او سږکال پـه ټولـو عملیـاتو کـي مطلق ناکامه او شرمنده سو ، دوستم غواړي چي د فوځي فشار ، بیلابیلو فریبونـو او تبلیغـاتو څخه په استفاده بیرته خپل پخواني سیمه ایز اقتدار تر لاسه کړي او د خپل نفـوذ لـه سـاحو څخه مجاهدین پر شا کـړي ، هـر وار چي سـیمي تـه راځي زرگونـه ملېشـې ، الـوتکي او سلگونه ټانکونـه ورسره وي ، د نظامي فشـار څخـه پـه اسـتفادې پـر مجاهـدینو څـو لـوی

بریدونه وکړي خو چې د مجاهدینو استقامت او مقابله ویني او له دې لارې له خپلې کامیابۍ نا امیده سي بیا نو د قومي او ژبني اختلافاتو په اچولو لاس پورې کړي ، په سیمه کې ازبکو مجاهدینو ته احوال رالیږي ، تلفونونه ورته کوي او په مخابرو کې بړغونه وربانديکوي چې تاسو خو زما قوم یاست تاسو ولې د پښتنو ملګرتیا کوئ ؟ راسئ زه به مو ونازوم او چې تاسو غواړئ پیسې ، چوکۍ او هر ازادي به درکړم خو مجاهدین په ځواب کې ورته وایي چې ته خو کافر او مرتد یې موږ مسلمانان یو کافر او مسلمان یو له بل سره دوست نسي- جوړېدلای ، موږ له خپلو نورو ورونو قومونو سره ستا په مقابل کې جهاد کوو ، کله چې له دې لارې هم نا امیده سي بیا نو پر عامو افغانانو ظلمونه شروع کړي، عام خلک شهیدان کړي، بندیان یې کړي او کورونه یې ورچور کړي او بیا په مطبوعاتو کې د طالبانو پر ضد د عملیاتو راپورونه ور کوي. دوستم په خپلو وروستیو عملیاتو کې د د دولت آباد او شیرین تګاب ولسوالیو پر ګڼو کلیو یرغل ور وړ ، د مبارکي روژې په میاشت کې یې د خلکو لسګونه کورونه وسوځول، ډیر دوکانونه یې چور او تالان کړل چې اکثره یې د مبایلو او قیمتي شیانو دوکانونه وه، دسیمې ګڼ شمېر کلیوال یې شهیدان

او ټیپان کړل ، له کورونو څخه یې ۷۰ تنه سپین ږیري او نور عام خلک چې اکثره یې دهقانان او شپانه وه له ځانه سره بندیان کړل. د خلکو ۵۰ عرادې کورني موټر سایکلونه او سلګونه رأسه مواشي ( پسونه، اوزې او نور حیوانات ) یې له ځانه سره یوړل او له کورونو څخه یې قیمتي لوښي، فرشونه، بسترې او نور شیان غلا او چور کړل .

## پوښتنه

څو ورځې وړاندې د امریکا د پوځ لوي درستیز ډانفورډ او په افغانستان کې د ناټو او امریکا د ځواکونو عمومي قومندان جنرال نیکلسن په یو لړ اظهاراتو کې وویل چې د اسلامي امارت مجاهدین په سږ اوړي یا جنګي موسم کې نه دي توانیدلي چې کومه لاسته راوړنه ولري.

د نظامي کمیسیون د یوه غړي او د اسلامي امارت د یوه مسؤل مقام په حیث په دې اړه ستاسو نظر څه دی او ددښمن دغه خبرې څرنګه ارزوئ؟

## ځواب

امریکایانو او ددوی مزدورانو همېشه کوښښ کړی چې د مجاهدینو پرمختګونه او فتوحات یا نورو خلکو ته منسوب کړي او یا خو بیخي انکار وربانديوکړي ، که مجاهدینو سږ کال کومه لاسته راوړنه نه درلودای نو بیا همدا جنرال نیکولسن په پنتاګون کې دا اعتراف ولې کاوه چې دکابل رژیم او مجاهدینو تر منځ روانه جګړه په ټپه ولاړ حالت ته رسېدلې ده ؟ یعني مزدور حکومت د طالبانو په مقابل کې پرمختګ نسي کولای ! د همدې خبرې تشریح او تائید د پګواش مؤسسې د دارالانشاء مشر له بي بي سي سره په مرکه کې هم وکړ ، هغه وویل چې حکومت طالبان نسي ماتولای !!! ، ولې همدې جنرال اعلان کاوه چې یوازې په جولای میاشت کې ۹۰۰ تنه ددوی مزدور عسکر د طالبانو لخوا وژل شویدی ؟ همدا ډول ددفاع وزارت په اګست میاشت کې د خپلو وژل شویو عسکرو شمېر ۱۰۰۰ تنه یاد کړ ، ددوی خبرې به نړیوالو او افغانانو ته څنګه د منلو وړ وي پداسې حال کې چې د اسلامي امارت مجاهدینو یو ځل بیا د کندوز ولایت مرکز فتح کړ او د هلمند ، اروزګان ، فراه ، فاریاب او سرپل ولایتونو د مرکزي ښارونو پر دوازو مجاهدین ولاړ دي ؟ زما په فکر اوس هغه وخت تېر دی چې امریکایانو به خلک په تبلیغاتو خطا ایستل ، اوس هر سړی په خپله د مجاهدینو فتوحات ویني ، افغان اولس خپل دوست او دښمن پېژندلی څکه د مجاهدینو تر شا کلک ولاړ دی ، موږ په دې ډاډه یو چې مؤمن اولس د مجاهدینو په لاسته راوړنو ښه خبر دی او هر څه عملاً ویني .

## پوښتنه

جناب شیخ صاحب زما د معلوماتو له مخې تاسو تردې وړاندې ډیر عمر د دیني تعلم او تعلیم په برخه کې صرف کړی دی.مګر په وروستیو کلونو کې مو مسلح جهاد ته



مخه کړه. څه باعث و چې تاسو جهاد يو داسې ضرورت وباله چې بايد تدريس ورته پرېږدئ. لطفا که دجهاد د اهميت او ضرورت په برخه کې توضيحات راسره شريک کړئ؟

## ځواب

د ديني علومو د تدريس په جريان کې ما له تدريس سره يو ځاى جهادى خدمت هم تر سره کاوه حتى د لويې دورې او وړې دورې د تدريس پر مهال هم ؛ مگر د تدريس سره يو ځاى مې ډېر وخت جهادي خدمت ته نه وو ورکړى ، کله چې د شهيد اميرالمؤمنين رحمه الله له لورى اوسنى مسئوليت را وسپارل سو نو دا وصيت يې راته وکړ چې مقصود به جهادى خدمت وي او تدريس به په څنگ کې ورسره کوې ، که څه هم شهيد أميرالمؤمنين رحمه الله د تدريس مشروطه اجازه کړېوه خو په سنگرونو کې له مجاهدينو سره ملگرتيا، د هغوى کارونه له نژدې څارل، په اصلاح او پرمختگ کې يې همکاري ورسره کول او مسئوليت کماحقه اداء کول داسي څه وه چې نور يې د تدريس دوام ته اخلاقاً اجازه نه راکول . د سپېڅلي تفسير ، مبارکو احاديثو ، فقهي شريفې او نورو علومو تدريس واقعاً يو لوى اسلامي خدمت دى او تر سره کول يې لازم دي ؛ خو سنگرونه هم علماء کرامو ته اشد ضرورت لري ، هغه مجاهد چې د اسلام ، مدارسو ، اسلامي خاوري او ناموس څخه د دفاع لپاره خپل سر نذرانه کړي ، خپل سبقان او دنيايي کارونه يې ورته پرې ايښي او په مياشتو مياشتو په سنگرونو کې د سختى شپې ورځې تېروي پر موږ علماوو ضرور دا حق لري چې د جهاد په لاره کې يې سمه رهنمايي وکړو او دا ډاډ ورکړو چې ستاسو استاذان هم ستاسو سره په سنگرونو کې خدمت کوي .

## پوښتنه

ستاسو په نظر د جهاد آداب کوم دي؟ مجاهد بايد شپه او ورځ څنگه تيره کړي؟ که په مختصر ډول د يوه رښتيني او معياري مجاهد د صفاتو په باره کې معلومات راکړئ؟

## ځواب

هغه مجاهد چې د جهاد آداب مراعات کړي او په ځان کې يې راولي هغه ته واقعي مجاهد ويلاى سو ، مجاهد بايد همېشه د الله تعالى ذکر وکړي ، مجاهد بايد مخلص وي له رياء کارى څخه بايد ځان وساتي ،مجاهد بايد متقي وي له فسق او گناهونو څخه بايد پرهېز وکړي ، بايد د خپلو أميرانو اطاعت وکړي ، رښتياويونکى وي له دروغو ځان وساتي ، غدر کوونکى نه وي ، د تکبر او عُجب (ځان خوښوني ) څخه بايد ليري وي ، مجاهد بايد صبر کوونکى وي شکايت کوونکى نه وي، د جگړې پر ډگر بايد ثابت قدمه او ثبات لرونکى وي، د جگړې په ډگر کي يې بايد پر الله تعالى توکل وي او د ښه تدبير خاوند وي ، بايد د جگړې په ترڅ کي د ملکي خلکو د ځان ، مال او ناموس خيال وساتي ، بايد د خپلي سلاح ښه ساتنه وکړي له پورته صفاتو سربېره د اختلاف څخه ځان ساتنه ، د ايثار صفت په ځان کي پيداکول او له ملگرو سره ښه رويه هم د يوه معياري مجاهد اخلاق دي .

## پوښتنه

جهاد يوه سخته لاره ده. دومره سخته چې حتى نوم يې له سختى تيرولو او کوشش څخه اخيستل شوى دى.ددې لارې په ځينو سختو پړاوونو کې کله مجاهدين د ستوماني او عزم بايللو احساس کوي. ستاسو په باور هغه کوم اسباب دي چې د مجاهد عزم هميشه محکم ساتي او له هغه څخه يو نه ماتيدونکى او کفر ته نه تسليميدونکى مبارز جوړوي؟

## ځواب

جهاد واقعاً سخته لاره ده ،ستړى ژوند ، شهادت ، زخم او اسارت ورسره لازمي شيان دي ، خو مؤمن چي له دومره تکاليفو سره سره بيا هم جهادي لاره غوره کوي دا د هغي الهي اعطاء او په زړه کي د ايمان د رڼا برکت وي چي په دنيا کي يې د فرضيت د اداء او په اخرت کي د الله تعالى د رضاء او جنت ته د داخلېدلو په نيت تر سره کوي ، د دومره ستر فرضيت د اداء په مخنيوي کي شيطان هم همدوره کوښښ کوي ، مجاهد که په جهاد

کي ستړيا او د عزم بايللو احساس کوي بايد دا د شيطان لومه وبولي او د خلاصون لپاره يې د الله تعالی سپېڅلي کتاب او د پيغمبر صلی الله عليه وسلم سپېڅلي سيرت ته رجوع وکړي ، الله تعالی فرمايي : (وَلَا تَهِنُوا فِي ابْتِغَاءِ الْقَوْمِ إِنْ تَكُونُوا تَأْلَمُونَ فَإِنَّهُمْ يَأْلَمُونَ كَمَا تَأْلَمُونَ وَتَرْجُونَ مِنَ اللَّهِ مَا لَا يَرْجُونَ وَكَانَ اللَّهُ عَلِيمًا حَكِيمًا، و قال الله تعالی : يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اصْبِرُوا وَصَابِرُوا وَرَابِطُوا وَاتَّقُوا اللَّهَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ – و قال الله تعالی : وَكَأَيِّنْ مِنْ نَبِيٍّ قَاتَلَ مَعَهُ رِبِّيُّونَ كَثِيرٌ فَمَا وَهَنُوا لِمَا أَصَابَهُمْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَمَا ضَعُفُوا وَمَا اسْتَكَانُوا وَاللَّهُ يُحِبُّ الصَّابِرِينَ ) الله تعالی مجاهد ته د ثبات او ټينګ درېدلو امر کوي او د عزم له بايللو او سستۍ څخه يې منع کوي، الله تعالی مجاهد صبر او مصابرې ته امر کوي ، صبر خو به پر خپلو تکاليفو کوي او شکايت به نه کوي او مصابره به داوي چې له کفارو سره به په صبر کي مقابله کوي، که کافر د دنيا له بله سره راځي او له خپل مستريح او آسوده ژونده تېرېږي او ستا سره په غرو او دښتو کي مقابله کوي مجاهد بايد تر کافر زر چنده سختۍ پرځان ومني، په جنګ کي هم کافر خوږېږي او هم مسلمان، چې کافر په خپل خوږ باک نه کوي مجاهد يې بايد بيخي ونکړي څکه مجاهد په همدې نيت جهاد کوي چې که

ژوندی يم الله تعالی به د ستړياوو بدله راکوي او راځخه راضي به وي او که شهيد شوم الله به خپله رضاء او جنت راکړي او کافر خو له الله تعالی څخه دا اميد هم نلري ، بل داچې د الله تعالی سپېڅلي پيغمبر صلی الله عليه وسلم له مجاهدو صحابه کرامو سره په سنګرونو کي څومره ستړياوي وړي دي، د الله تعالی د رسول صلی الله عليه وسلم مبارکي ويني توی شوي او زخمي سويدی او ګڼ شمېر مبارک اصحاب رضی الله عنهم په شهادت رسېدلي مګر له دومره ډېرو تکاليفو او ستړياوو سره سره نه د رسول صلی الله عليه وسلم او نه د مبارکو اصحابو عزم کمزوری سو ، هغوی خپل رسالت په حقه ترسره کړ اوس موږ ته دا مسئوليت رارسېدلی ،

نو چې دا تولي خبري يو مجاهد په ذهن کي وساتي بيا به ولي عزم بايلي ؟ ولي به له جهاده ستومانه کېږي ؟

## پوښتنه

که په پای کې د عام اولس او زموږ د لوستونکو لپاره څه پيغام لرئ لطفا يې راسره شريک کړئ!

## ځواب

د افغانستان مجاهد اولس او ستاسو درنو لوستونکو ته دا پيغام لرم چې د تاريخ پدغو حساسو شېبو کي د مسلمان ملت هر قشر او طبقه بايد خپل مسئوليت ته متوجه سي ، د اسلامي امت علماء کرام ، پوهان ، د قلم او ژبې خاوندان ، غنيان وروڼه او عام مسلمانان په پوره اتحاد او يوه بړغ د خپلو مجاهدينو تر شا ودرېږي او هر ډول معنوي او مادي ملاتړ يې وکړي. کفري ملت سره له خپلو ټولو ستونزو سره يو ځای سوی او په ټوله نړۍ کي يې پر مسلمانانو اور بل کړيدی ، د افغانستان اسلامي امارت د نړۍ د مظلومانو يوازنی مرجع ده چې د اميد سترګي يې ورته نيولي، راسئ په ټولو د شهيدانو په وينو جوړ سوی اسلامي امارت د بري تر پولو ورسوو، د بري په لاره کي هر يو خپل مسئوليت اداء کړو او د سپېڅلي شرعي نظام د تحکيم لپاره هري قربانۍ ته تيار سو، د افغانستان مجاهد اولس د امريکايي يرغل له پيله تر اوسه واقعاً ستري قربانۍ ورکړي او مجاهدينو ته يې د خپل وس مطابق هر ډول مرستي رسولي دي ، زه له دوی څخه د مننې تر څنګ غواړم ترڅو خپل دغه اسلامي او ملي مسئوليت ته دوام ورکړي او د يرغلګرو او ددوی د غلامانو په مقابل کي د جګړې د اوږدوالي او د کفري نړۍ د مکارو او شيطاني تبليغاتو پروا ونکړي خپل عزم او حوصله له لاسه ورنکړي او له خپلو مجاهدو بچيانو سره کلک ودرېږي ، هغه ورځ لري نه ده چې د الله تعالی په نصرت، د مجاهدينو او د مؤمن اولس په بېدريغه قربانيو به الله تعالی پر دغه خاوره اسلامي نظام قائموي او دا ستړی ملت به د اسلامي نظام په سيوري کي د آرام ساه اخلي ان شاء الله تعالی . وماذلک علی الله بعزيز .

۳/۱/۱۴۳۸ هـ ق

# بریتانوي سفیر مسلمان شو!!!

شرافت

سعودي عربستان کې دبرتانیې د سفیر په اسلام راوړو لویدیځ ټکان خوړلی، دیادوني وړده چې سایمن پاول کولس په ۲۱۵ زکال کې په سعودي عربستان کې دبرتانیې سفیر مقرر شو، سایمن پاول کولس (SIMON COLLIS) په ۱۹۵۶ز کې دفروري په ۲۳مه زیږیدلی نوموړی ددینه وړاندې په بحرین، تونس، اردن، بصره ،دوبی او هند کې هم برتانوي پاته شوی ، په ۲۰۱٦ زکې لوموړی برتانوي سفیر دی چې داسلام راوړو وروسته یې حج هم وکړ، حج ته یې ځان سره خپله میرمن هم بیولې وه، ٦۰کلن سایمن پاول دحج په مهال خپل انځورونه خپاره کړي، په ټویټر دهغه دیوعکس لاندې دسعودي یوې لیکوالې فوزیه البکر لیکلي: سایمن پاول له خپلې میرمنې سره یوځای حج اداء کړ او دالوموړی برتانوي سفیر دی چې دحج فریضه یې ترسره کړه.

برتانوي سفیرته دټویټر له لارې دلوی شمیر مسلمانانو لخوا دمبارکیو پیغام لیږدونکو له منځه یوه سعودي شهزداګی بسمه بنت سعود هم ده ، هغه دخلکو دمبارکیو پیغامونو څخه دمننې په کولو لیکلي: لنده داچې ما په اسلامي ټولنه کې دیرش کلو تیرولو وروسته اوپه ښه غور سره داسلام دمطالعې نه پس اسلام قبول کړی چې دازما ترټولو لوی ویاړ او خوشالۍ ځای دی

هو! دا لومړی برتانوی شخص ندی چې د اسلام حقانیت څخه په تاثر اخستلو یې اسلام قبول کړ بلکې څوکاله وړاندې دبرتانیې دپخواني صدراعظم ټونیبلیرښینې ( لارن بوت) هم اسلام قبول کړ، لارن بوت داسلام را وړو څخه وروسته میډیا ته وویل: زه اوس شراب نه څکم ، په لمونځ کولو سره سکون مومم، او په حجاب کولو ځان راته خوندي بریښي دعظیم الشان قرآن په تلاوت کولو باډ ترلاسه کوم زه داسلامي لاربښوونو څخه ډېره متاثره شوم او مسلمانان مې دلویدیځ دپروپاګند برعکس ومندل

په کومه ورځ چې دټونیبلیر ښېنې داسلام راوړو په هم هغه ورځ دیوې چینایي کمپنۍ لوړپوړې مشر هم داسلام قبلولو اعلان وکړ په دې سره لویدیځ وال په حیرانتیا کې ډوب شول او هغه میډیا ته وویل: چې دده داسلام قبلولو لامل دعظیم الشان قرآن مطالعه له غریبانو سره مرسته او دمظلومانو ملاتړ دی چې په دې اړه اسلام ترټولو ښتینی دین دی

دحضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ داسلام قبلولو له واقعې څخه نیولې دټونیبلیر دښینې تراسلام قبلولو پورې ټول داسلام دزرینو دلاربښوونو څخه متاثر شوي دي څو کاله وړاندې په هند کې دهندوانو په یوه متعصبه کورنۍ کې یوې مشرې میرمنې اسلام قبول کړ، څوک چې په هغه ټوله کورنۍ کې دعزت او وقار څخه برخمنه میرمنه وه په وجه یې په هغه ټوله کورنۍ لړزه راغله ډېرو دهغې دپوهولو کوښښ وکړ خو ناکام شول بالاخر دهندوانو لوی پنډتان یې ورته راوغوښتل څو هغوی یې دهندو دین په باره کې شکوک اوشبهات ورته وړاندې کړل دهغو لرې کړي هغوی ډېر څه ټولو په پای کې هغې ورته وویل: زه داسلام زرینو لاربښوونو څخه متاثره شوې یم اومسلمانه شوې یم او په همدې باندې غواړم مره شم.

څو ورځې دمخه مې دهندوانو دیو پنډت دلور داسلام راوړو داستان ولوست ، راته جوته شوه چې په نړۍ کې په څومره شوق او ذوق سره خلک داسلام قبلولو په لور میلان لري خو په دې شرط چې مسلمانان خلکو ته داسلام اصلي څېره ښکاره کړي دنړۍ په ټولو ژبو کې دعظیم الشان قرانې ترجمې عامې شي او مسلمانان پخپل منځ کې له فرقوي جنګونو او شخړو څخه ډډه وکړي او نړۍ ته خپله دوحدت نمونه وړاندې کړي دنویو مسلمانانو حوصلې لوړې وساتي او خپلې رویې نرمې کړي توند روي پای ته ورسوي دیو ستر عالم په وینا: لویدیځه نړۍ داسلام راوړو لپاره داسلام په دروازه کې ولاړه ده خو افسوس چې مسلمانانو داسلام دروازه پخپله مونږ ترلې.....

قاري حبیب

# دیرغل دبګی

# افغاني ټټوګان وپیژنئ

نن په افغانستان د امریکا د یرغل پنځلس کاله پوره شول.

د افغانستان د تاریخ د دې تورې ورځې په رارسیدو په رسنیو کې بیلابیلو تبصرې او لیکنې لیدل کیږي.زما په نظر په دې مناسبت یوه مهمه موضوع چې تاریخي اهمیت لري داده چې ددې ستر جنایت( په افغانستان د امریکا یرغل) افغاني اشرباني او هغوی چې امریکایان یې په خپلو اوږو سپاره راوړل، له هغوی سره یې د هیواد په اشغال کې مرسته وکړه او په افغانستان د امریکایي صلیبي یرغل په لړ کې هر یوه د شاشجاع او ببرک کارمل رول اداء کړ. باید چې هر یو یې وپیژنو، په یاد یې ولرو او راتلونکي نسل او تاریخ ته یې په ګوته کړو. ترڅو رانه ورک نه وي او نه یې بیا د اولس او تاریخ له محاکمې ځان ژغورلی وي.

مشهوره ده وایي افغانستان بې دوسیې ملک دی. یعني کوم محفوظ ارشیف او ریکارډ نلري هرچا چې هر څه وکړل څه وخت وروسته په خپلو ټولو جنایاتو پښیمانه وي او ځان سپینه پرښته بولي. همدا لامل دی چې نن سبا حامدکرزی هم ځان د امریکا دښمن بولي او ځینې خلک یې په دې اوتوبوتو غولیدلي هم دي.په دې لنډه لیکنه کې د امریکایي یرغل د بګی سرکرده ټټوګان درپیژنم. هغوی چې په مټو یې امریکایي کفار زموږ په شهیدپال هیواد مسلط شول او زموږ مجاهد اولس ته یو بل اوږد استعمار او د ازادۍ سخته جګړه ور له غاړې شوه.

رښتیا خبره دا ده چې که له امریکایي کفارو سره د افغاني منافقینو همکاري نه وای هیڅکله یې دا جرأت او توان نه درلود چې د مسلمان په وطن داسې زړور یرغل وکړي. هغه شاعر رښتیا ویلي:

دښمن په زوره ننوت په کور د مسلمان  خو دغه کار یې هم وکړ په زور د مسلمان

د۲۰۰۱ میلادي کال د سبتمبر په ۲٦ مه دچهارشنبې ورځ، غرمه دوولس بجې وي ، چې دسي آی اې لومړی روسي ساخته چورلکه چې دهمدې ادارې یو ٥٩ کلن لوړرتبه افسر ( ګاري شرون ) په کې سپور و، دمغرور هندوکش  دانجمن له غاښې واوښته  او دپنجشیر په خوا یې پرواز  ته ادامه ورکړه ، ګاري شروین دخپلو پښو ترمنځه  یو فلزي بکس ایښی و چې دری میلیونه ډالر په کې پراته وو، نوموړی روان وو ترڅو په دې پیسو په پنجشیر کې جنګیالي رانیسي، چې دامریکایي یرغل لپاره دمقدمة الجیش رول ادا کړي.

## انجینر عارف سروري

انجنیر عارف د شورای نظار د استخباراتو مسؤل و. ګاري شرون لومړنی لیدنه له ده سره وکړه.انجنیر عارف ته یې پنځه لکه ډالر ورکړل او په مقابل کې هغه د هر راز همکاری ډاډ ورکړ.له امریکایي استخباراتو سره د انجنیر عارف لومړنی همکاري دا وه چې د خپلو استخباراتي کسانو په ملتیا یې د یوه امریکایي ځانګړي ټیم چې د سټان



په نوم د جي پي ایس ماهر یې مشري کوله،د کابل په شمال کې یې د طالبانو ټول جنګي خطوط،مورچې او سنګرونه د جي پي ایس په توسط په نښه کړل ترڅو امریکایي الوتکې وربانديې دقیق بمبار وکړي.

انجنیر عارف د شورای نظار ټوله استخباراتي شبکه د سي آی اې خدمت ته وقف کړه.دوی په یوه میاشت کې ( د سبتمبر له ۲۷ د اکتوبر تر ۲٦ مې پورې) د سي آی اې لپاره تر ۴۰۰ زیات خارګر راپورونه تیار کړل چې د سي آی اې د ټیم لخوا امریکا ته لیږل کیدل.

**محمد قسیم فهیم**

قسیم فهیم هم هغه کس و چې په امریکایي یرغل کې یې خپله ونډه په اخلاص ترسره کړه. ګاري شرون له نوموړي سره د سبتمبر په ۲۷ د پنجشیر په بازارک کې ولیدل.فهیم ته یې یو میلیون نغد ډالر ورکړل او هغه په مقابل کې د هر راز همکارۍ ټټر وواهه.فهیم موافقه وکړه چې د شمالی د جنګي خط مسؤل بسم الله خان ته به قومنده ورکړي چې د سي آی اې له ټیم سره هر راز همکاري وکړي. فهیم دیرش تنه جنګیالی د سي آی اې په واک کې ورکړل ترڅو یې د جاسوسانو په حیث وروزي. فهیم

په ډیره تلوسه له امریکایانو پوښتل چې : (جګړه کله پیلیږي ؟ تاسې به کله رارسیږئ ؟ امریکا به اصلي یرغل کله شروع کوي ؟)

**استاد سیاف**

ګاري شرون په خپل کتاب کې لیکلي چې دوه ورځ بعد د سبتمبر په ۲۹ مه یې د پنجشیر په ګلبهار کې له سیاف سره ملاقات وکړ. سیاف ظاهرا داسې مفخم ښکارېدو لکه د ایران مشر آیت الله خمیني چې وي. مګر په عمل کې د امریکا دښمن نه بلکې دوست و.ګاري شرون سیاف ته یو لک ډالر ورکړل او سیاف په مقابل کې وعده وکړه چې د القاعدې د یوه مشر ایمن الظواهري په له منځه وړلو کې به له امریکا سره مرسته کوي.

وروسته چې د امریکایانو لخوا د افغانستان په مختلفو برخو کې د طالبانو خلاف د جګړې پیلولو تقسیمات وشول. سیاف ته د سي آی اې لخوا د افغانستان ختیځ ولایتونه او کابل ته د نږدې سیمو مسؤلیت سپارل شوی و خو د طالبانو په لاس د قوماندان عبدالحق اعدام سیاف دومره وویراوو چې د سي آی اې له هرڅومره په شا ټیپولو سره یې هم جرأت ونکړ چې د افغانستان ختیځ ته لاړ شي او د امریکا د ځمکني جنګیالي رول اداء کړي.

**ډاکتر عبدالله**

ډاکتر عبدالله د مسعود ترجمان او د مسعود په ټولو استخباراتي لوبو کې دخیل سړی و. ګاري شرون وایي مسعود چې له وژل کیدو څو میاشتې وړاندې په پاریس کې د فرانسې داستخباراتو میلمه و ډاکتر عبدالله یې د ترجمان رول اداء کاوو.له قسیم فهیم سره د ملاقات په مهال ډاکتر عبدالله د فهیم د ژباړن رول اداء کاوو.خو څرنګه چې د ډالرو په ویش کې نوموړي ته برخه نه وه رسیدلې د اکتوبر په ۱۷ ډاکتر عبدالله له ګاري شرون سره د پنجشیر په استانه کې د ملاقات غوښتنه وکړه. د ملاقات په مهال ډاکتر عبدالله وویل چې د پنجشیر خلک ډیر غریبان دي باید مرسته ورسره وشي، ګاري شرون ډاکتر عبدالله ته دوه نیم لکه ډالر ورکړل. عبدالله ګاري شرون ته وفهموله چې قسیم فهیم یوازې پوځي مشر دی او سیاسي واک له دی سره دی. او دی حاضر دی چې له امریکایانو سره په سیاسي برخه کې هر ډول همکاري ترسره کړي.

**امر الله صالح**

امرالله صالح له ډېر پخوا له امریکایي استخباراتو سره اړیکي درلودي. نوموړی د سي آی اې لخوا روزل شوی او د مسعود تر څنګ یې د یوه فعال امریکایي جاسوس په حیث دنده اجراء کوله.

نوموړي په خپله اوږده لیکنه (پس از مسعود) کې له دې رازه پرده پورته کوي چې نوموړي د امریکایي یرغل په لومړیو شیبوکې عملا دسي آی اې لپاره دیوه جاسوس او اطلاعات راټولوونکي ډلې دمشر په صفت کار کوو، څکه په یوه ټیلفوني مکالمه کې د سي ای اې امریکایي استازی (فل) صالح ته وایي چې نور ددې ضرورت نشته چې دپخوا غوندې استخباراتي معلومات لومړی تحلیل او کره کړی او بیا یې موږ (امریکایانو) ته مخابره کړئ، څرنګه چې وضعیت اضطراري دی، نوښایي چې هرډول استخباراتي معلومات راټول کړئ او پرته له لاس وهنې یې عجالتا سي آی اې ته مخابره کړئ صالح وایي فل راته وویل (دولت امریکا از شما می‌خواهد هر نوع اطلاعی که در اختیار دارید- یا به‌دست می‌آورید- با ما شریک سازید. من تکرار می‌کنم هر نوع اطلاعی که دارید با ما شریک سازید. خواهش ما این است که از تحلیل اطلاعات ابا ورزید. هرچه را که می‌شنوید و به‌دست می‌آورید، به‌صورت خام و دست‌نخورده، با ما شریک سازید. دیگر در آن حالت عادی قرار نداریم که اطلاعات پروسس‌شده را ترجیح دهیم. حتا تبصره‌هایی که توسط مردم عادی در افغانستان می‌شود یا در دفاتر طالبان یا در صفوف جنگی آن‌ها صورت می‌گیرد، برای ما اهمیت دارد (پس از مسعود(

صالح وروسته د ګاري شرون د ټیم ملګری شواو د کابل له سقوط وروسته له امریکایي استخباراتي ټیم سره یو ځای کابل ته داخل شو. امرالله صالح لیکلي چې کابل ته په داخلیدو مو لومړی شپه له امریکایانو سره په اریانا هوټل کې تیره کړه. چې دې هوټل امریکایانو ته خوند ورکړ او بیا دا ځای سي آی اې د خپل مرکز په حیث انتخاب کړ.

## بسم الله خان

بسم الله خان چې په بسم الله محمدي سره هم شهرت لري د امریکایانو یو اخیستل شوی او کرایي اجیر و چې د کابل د شمال په خطوطو کې یې د امریکایي الوتکو تر سیوري لاندې د ځمکنیو عملیاتو مشرتوب په غاړه درلود.

د امرالله صالح د لیکنو له مخې د امریکایي پوځیانو یوه ټولي د ډګروال هاس تر مشرۍ لاندې د بسم الله خان سره اوږه په اوږه د کابل په شمال کې د ځمکنیو عملیاتو د مخته وړلو مسؤلیت درلود. له دوی سره د امریکایانو ځانګړي استخباراتي کسان هم و چې الوتکو ته یې د طالبانو د مورچو کوردینات ورکول. دوی چې د څو اونیو بمبار په توسط ونه توانیدل د طالبانو جنګي خط مات کړي. بیا د ټلوالې عمومي مشر- برهان الدین رباني له امریکایانو غوښتنه وکړه چې په افغانستان لوی لوی بمونه وغورځوي تر څو د طالبانو مقاومت مات شي.

بسم الله خان د کابل له نیولو وروسته په توره بوږه کې هم له امریکایانو سره په اوږه په اوږه د مجاهدینو په خلاف وجنګېد او یو بل ملګری یې قومندان ګل حیدر له خپلو ملیشو سره د پکتیا په شاهیکوټ کې د یرغلګرو امریکایانو لپاره د ځمکنیو ملیشو رول اداء کاوو.

## حامد کرزی

حامدکرزی چې په دې ورځو کې ځان د امریکا د مخالف په بڼه کې ظاهروي. باید هیر نکړو چې د امریکایي یرغل د لومړنیو پیش خدمتانو څخه دی چې حتی د سبتمبر له پیښې ډیر وخت مخکې یې لا له امریکایانو سره تار درلود او په اسلام اباد کې د امریکا له سفارته یې معاش اخیست.



په اسلام اباد کې د سي آی اې د دفتر مشر- رابرټ ګرینر په خپل کتاب کې لیکلي چې د سبتمبر له پیښې وړاندې د ۲۰۰۱ م کال په اګست کې د حامدکرزي کسانو په کندهار کې د طالبانو په خلاف هغه شب نامې خپرې کړې وې چې د سي آی اې لخوا ورته برابرې شوې وې.

د سبتمبر له پیښې وروسته حامدکرزی له لومړنیو کسانو و چې د امریکایي یرغل لپاره دخدمت او حتی په دې لار کې د خطر منلو ته یې اماده ګي وښوده. هغه د سي آی اې له کسانو سره له کتنو او پروګـــرام جوړولـــو وروســـته د افغانستان داخل روزګان ته لاړ او هلته یې د طالبانو په خلاف د بغاوت بیرغ پورته کړ.

له حامدکرزي سره امریکایانو د هـــوا لـــه لارې د وســـلو، خـوراکي مـوادو او پیسو مرستې کولې وروسته یې د فاکس تروت په نوم یو ځانګړی استخباراتي ټیم چې د ګریک په نوم امریکایي یې مشري کوله روزګان ته ولیږه ترڅو د کـرزي سـاتنه وکـړي. کـرزی د طالبانو له سقوط وروسته بالاخره پـه امریکـایي ټانـګ کـې سـپور د کندهار ښار ته داخل شو.

**ګل اغا شیرزی**

رابرټ ګرینر په خپل کتاب کې لیکلي چې په افغانستان له حملې څو ورځې وروسته زه د سي آی اې له دوو نورو کسانو مارک او ګریک آر سره کوټې ته لاړم او د ګل اغا شیرزي او د هغه له وراره انجنیر یوسف پښتون سره مو ولیدل. دوی له موږ نه غوښتنه وکړه چې وسلې او امکانات ورته برابر کړو تر څو له امریکایي هوایي بریدونه سره هم مهال په طالبانو ځمکني عملیات شروع کړو. له دې وروسته ګل اغا شیرزي او ملګرو یې چې انجنیر یوسف، اکرم خاکریزوال او خالد پښتون هم په کې وو رسما یې د سي آی اې په ملاتړ د جګړې لپاره اماده ګي پیل کړه.

ګل اغاشیرزي او انجنیر پښتون د اکتوبر په ۲۹ په اسلام اباد کې د امریکایانو له عمومي قوماندان جنرال ټومي فرانکس سره هم مخامخ ملاقات وکړ. وروسته د دوی لپاره له پاکستان څخه وسلې واخیستل شوې اود بولدک له لارې افغانستان ته واوښتل. له دوی سره د ایکو په نوم د سي ای اې ځانګړی ټیم هم ملګری شو چې د کندهار د نیولو تر وخته ورسره و او د طالبانو سره د جګړو په مهال یې امریکایي الوتکو ته کوردینات ورکول.

**عبدالرشید دوستم**

امریکایانو د جنوب په شان په شمال کې هم یو شمیر قوماندانان د ځمکنیو ځواکونو په حیث استخدام کړي وو. رشید دوستم د امریکایانو په لارښوونه د دره صوف په لوړو ساحو کې خپل کسان راټول کړل چې د الفا په نوم د سي آی اې ځانګړی ټیم هم ورسره ملګری و. دوی د دره صوف په ساحه کې دطالبانو په جنګي کرښو بریدونه کول.هغه مهال چې امریکا له ازبکستان څخه د خان اباد قرشي هوایي اډه کرایه کړې وه دوستم ته له همدې اډې څخه امریکایانو وسلې،خوراکي مواد، پیسې او حتی د آسونو لپاره وابښه اورشقه هم په ځانګړو پراشوټې بستو کې رسول. ګرینر په خپل کتاب کې د هغه خندونکي تصادف کیسه هم کړې چې د دوستم د آسونو رشقه یو ځل ګل اغا شیرزي ته د خوراکي موادو په نوم پراشوټ شوې وه.

دوستم وروسته په مزار کې هم د طالبانو خصوصا د بهرنیو مهاجرینو او مجاهدینو په قتل عام کې له امریکایانو سره ډیره مرسته وکړه.د سي آی اې مامورین مایک سپین او ډیوډ ټایسن هغه کسان و چې د قلعه جنګي د قتل عام په طراحي کې د جنرال دوستم په شمول ورته د مسؤلیت ګوته نیول کیږي.

**عطاء محمد نور**

د دوستم تر څنګ د بلخ په مربوطاتو کې د امریکایانو بل ګوډاګی عطامحمد نور و .ګاري شرون په خپل کتاب کې له امریکایانو سره د عطامحمد نور د تلوسې په اړه لیکلي: د اکتوبر تر اولسمې د سي آی اې هغه ټیم چې باید له قوماندان عطاء محمد

نور سره ملحق شوی وای لا افغانستان ته نه وو راغلی ، په دې باندې عطامحمد نور سخت خفه و، او نږدې و چې دخپلې غوسې دښکاره کولو لپاره له دوستم سره جنګ وکړي ، موږ دعطامحمد نور دخوشاله کولو لپاره دنوموړي لپاره ۲۵۰ زره ډالره بښل کړل او د اکتوبر په ۱۷ مو دپنجشیر په استانه کې قسیم فهیم ته ورکړل ترڅو يې عطامحمد نور ته واستوي .وروسته د (بربوو) په نوم استخباراتي امریکايي ټیم له عطاء محمد نور سره یوځای شو.عطامحمد نور او دوستم د بلخ په دره صوف کې په طالبانو بیا بیا بریدونه وکړل خو کوم پرمختګ یې ترلاسه نه کړ. طالبانو د دره صوف په جبهه کې تر ټولو سخت مقاومت کاوو. په دې جبهه کې د طالبانو جنګي لیکې له هغه وروسته ماتې شوې چې امریکایانو ورباندې سرې چاودونکي زهري بمونه واورول او هغوی يې له يوې مخې قتل عام کړل.د دره صوف د جنګي خط ماتیدل د طالبانو د شاتګ پیل و چې وریسې له تخار او په تعقیب یې د کابل له دفاعي کرښو هم طالبان په شا شول.

## کریم خلیلي

کریم خلیلي ته په بامیانو کې د ځمکني ځواک او د طالبانو په خلاف د جګړې مسؤلیت سپارل شوی و. له نوموړي سره د دلتا په نوم د سي آی اې ځانګړی ټیم فعال و چې امریکايي الوتکې يې رهبري کولې. خو کریم خلیلي چې له طالبانو یې سخته ویره درلوده تر پایه يې دا زړه ونه کړای شو چې د طالبانو په خلاف کوم مؤثر عملیات ترسره کړي. نوموړی له هغه وروسته په بامیانو ښار حاکم شو چې طالبانو دغه ښار پریښود او له سیمې ووتل.

په شیعه ګانو کې د امریکا نور د پام وړ غلامانو له جملې محمد محقق د یادولو وړ ده ، چې دسرپل په بلخاب کې یې دطالبانو په خلاف دبرید مرکزیت جوړ کړی و اوپه مختلفو جبهو کې دامریکایانو په ګټه وجنګېد، د پروان په شیعه میشتو سیمو کې مصطفي کاظمي او سید حسین انوري هم له امریکایانو ډیرې نقدي مرستې او پراشوټي اکمالات ترلاسه کړل. دسید حسین انوري په اړه ویل کیږي، چې نوموړي دلوګر او ګردیز په شیعه ګانو کې له خپل نفوذ په استفاده دامریکایي ډالرو په توسط ګڼ جاسوسان کرایه کړي و، ترڅو سي آی اې ته په جنوب ختیځ کې دطالبانو جاسوسي وکړي، دهمدې فعالیت له امله په همدې حوزه کې ډیر طالبان او عرب مجاهدین هم دامریکایانو لخوا شهیدان او یا ونیول شول.

## اسمعیل خان

دافغانستان په لویدیځ کې د امریکایانو د یادولو وړ ګوډاګی تورن اسمعیل خان و د امریکایانو لخوا د لیکل شویو کتابونو دمعلوماتو له مخې نوموړي په دې شپو ورځو کې دافغانستان په غرب کې دایران دپولې په سل کیلومترۍ کې پټ و چې وروسته ورسره دسي آی اې د ( چارلي) په شفري نوم استخباراتي ډله ملګرې شوه، ترڅو دطالبانو په ضد جګړې ته يې وهڅوي.

په اسمعیل خان سربیره دغور په جنوب او پرچمن ولسوالۍ کې د ډاکټر ابراهیم غوري کسانو دامریکایي الوتکو په سیورې کې په طالبانو عملیات کول او شمال ته دکوهستاناتو په ساحه کې قومندان احمدخان مرغابي په فاریاب کې دطالبانو په خلاف په فعالیت بوخت و، چې امریکایانو ورته د دلالانو له لارې ډالر او دپراشوټ په واسطه وسلې، خوراکي توکي او د آسونو اوبه او وابښه رسول.

## قومندان عبدالحق

د ( جنګ اشباح ) کتاب لیکي چې عبدالحق چې له ډیر پخوا یې دبرتانوي استخباراتو MI-6 سره کار کاوو ، د ۱۹۸۱ کال په مۍ کې د سي آی اې له یوه افسر هاورډ هارټ سره شناخته شو او له هغه مهال یې دامریکا لپاره کار پیل کړ ، عبدالحق چې دسپتمبر له حملې وړاندې یې په دوبۍ کې تجارت کاوو، کله چې امریکا



په افغانستان دبرید لپاره تابیا نیوله یو ځل بیا امریکایانو استخدام کړ، ترڅو دافغانستان په ختیځ کې دامریکا لپاره کار وکړي ، امریکا عبدالحق ته پیسې ورکړې ، خو یوازې ددې لپاره چې له طالبانو وروسته په ختیځ کې دامریکا په ګټه دقدرت خلا ډکه کړي ، ځکه امریکایان پوهیدل چې نوموړی دومره توان نلري چې دطالبانو په ضد بغاوت وکړي او هغوی رانسکور کړي.

خو عبدالحق دامریکایانو مشوره بابیزه وبلله او د اخلاص ښکاره کولو لپاره په خپل سر له خپلې نولس کسیزې ډلې سره افغانستان ته روان شو، نوموړی دلوګر په ازره کې طالبانو ونیو او دامریکایانو دهمکارۍ په جرم یې اعدام کړ امریکایانو دنوموړي دخلاصون هڅه وکړه او یوه بې پیلوټه الوتکه یې هم سیمې ته ولیږله ، خو ګټه یې ونه کړه.

**یو شمیر نور شاشجاعان**

یاد شوي کسان زیاتره هغه خلک و چې د امریکایي یرغل په پرمخ وړلو کې یې تر نورو ډیر مسؤلیت منلی و او له امریکایانو سره یې مخامخ روابط درلودل تر دې چې د ورسره امریکایي مشاورینو په حکم او فرمان یې

حرکت کاوو. له دوی ماسیوا نور هم ډیر داسې د منځنۍ یا ټیټې سطحې قومندانان وو چې د امریکایي الوتکو په سیوري کې د خپل دین او اولس په ضد وجنګېدل او دخپل مور وطن په ضد یې د متجاوز غلیم ملګرتیا وکړه.

د بیلګې په توګه د شمالی ټلوالې په اړخ کې دفرخار جبهه او دتخار دنیولو مسؤلیت قومندان داود داود ته سپارل شوی و، دنوموړي ملاتړ ته د مولاناسیدخیلي او قومندان ګدا پنجشیري په مشرۍ څو زره اضافه ځواکونه هم له پنجشیر څخه لیږل شوي وو چې خواجه غار په مربوطاتو کې یې د امریکایي بمبار سره هم مهال په طالبانو بریدونه کول. دکوکچې په بله غاړه په شمالي تخار کې مطلب بېګ ، پیرم قل ، کبیرمرزبان ، پیرمحمد تالقاني، بشیر چاه آبي او ځیني نور جګړه مار قومندانان امریکایانو په دې ګومارلي و تر څو له امریکایي بمبار سره هم مهال د طالبانو په دفاعي مورچو هجوم وروړي.

د پکتیا په ساحه کې پاچا خان ځدراڼ د طالبانو له وتلو وروسته د خوست ولایت ونیو او بیا یې زوی عبدالولي ځدراڼ د شاهیکوټ په جنګ کې له امریکایانو سره په یوه مورچل کې د مجاهدینو په ضد وجنګېد.په ننګرهار کې حضرت علي او زمان غمشریک د امریکایانو په ټونګ د طالبانو په ضد بغاوت وکړ او وروسته د امریکایانو رسمي ملګري شول.د نیمروز په ساحه کې مشهور قاچاقبر جمعه خان بلوچ او عبدالکریم براهوي له امریکایي استخباراتو سره په رابطه کې و. ګرینر په خپل کتاب کې لیکلي چې دوی امریکایانو ته ویلي و چې په ریګستان کې له هغه هوایي ډګر څخه د حملو لپاره استفاده وکړي چې عربو ښکاریانو جوړ کړی و.

یاد شوي کسان او ځیني نور د تاریخ هم هغه تورمخې څیرې دي چې په اخروي مختورۍ علاوه یې په دنیا کې هم خپل اولس او تاریخ ته مخ تور دی ځکه دوی د اولس غداران او د خپل وطن او عقیدې پلورونکي دي.

په دې لیکنه کې د لاندې کتابونو له معلوماتو استفاده شوې:


ورود اول - ګاري شرون

بوش په جنګ کې - باب ووډ

د فضیلت سزا - سارا چیس

جنګ اشباح - ستیو کول

کرزی - نیک بي مایلز

۸۸ ورځې تر کندهاره - رابرټ ګرینر

پس از مسعود - امر الله صالح




# ګلوريني پاڼې



## ورک ملګري

رضوان الله (فیضاني)

رانه ورک زما د مينې ټول احباب دي
ښكاري وړي بيا وحشي خوني سېلاب دي

وې تنكى غوټۍ لا نه وې غوړېدلې
رژولي ځومره زرزر انقلاب دي

دا مرګى څومره بې رحمه او ناځوان دى
يرغلونه يې سريع او په شتاب دي

خدايه هغه خلک څومره بختور دي
چې ګډ شوي ستا د مينې په درياب دي

خوار بلبل پر زړه زخمي هم ډېرې اوښکې
تويې کړي په هجران کې د ګلاب دي

څو معصومې هوسۍ بيا په وينو رنګ دي
خدايه دا شهيدې کړي کوم قصاب دي

شهادت داسې سپېڅلى لوړ مقام دى
رب ستايلي شهيدان په خپل کتاب دي

اسې زين توري ترملا چې مدام ګرځي
(فيضاني) داسې تورزن خلک کامياب دي

خالق يار احمدزی



## غزل

په خوږه، خوږه خندا را باندې ګران شوې
لږ راغاړې وزه چې بيا راباندې ګران شوې

د اغزيو سره مينه کې عادت شوم
د ګلاب د ګل ښکلا را باندې ګران شوې

مجاهده د لوړ عزم نمونه شوې
کړه دې ماته امريکا راباندې ګران شوې

دوی تسليم تا لاسنګر پرېښی ندی
ويښ ضمير دې ده آشنا راباندې ګران شوې

خير پراته دې وي دستارباندې ګردونه
بيا دې زيري د غزا راباندې ګران شوې

ښکيلاګر دي بيا د کفر اسلام جنګ دی
په نړۍ کې شول رسوا را باندې ګران شوې

ستا يادونه تصور کې را ته راشي
خالقياره کړم ژړا راباندې ګران شوې

## د غیرت ټاټوبی

**حکمت زرمتی**

د دې مظلوم اولس آهونه دومره سپک مه گڼه
لا میرویس خان او ابدالي له کلي ورک مه گڼه

مورې حقیقت کې په الله باندې مین خلک یو
زما استشهاد د مجازي مینتوب پرک مه گڼه

مورې چې تر یاره رسوي ستا د زندان زولنې
د وصل پرې دي پرې رسو دا ولچک مه گڼه

زمورې شهیدان خدای په قرآن کې دي ژوندي بللي
زمورې قبرونه له هډوکو ډک مه گڼه

لا مو شاجورې له مرمیو ځینې تشې نه دي
هر یو گوزار مو د ثقیل آخیري ټک مه گڼه

دا د حکمت د مینې کور دا د غیرت ټاټوبی
دلته ختمېږي دا خبر خبر د شک مه گڼه

## غزل

# بسمل

ژوندون خالي رکات دی یو قیام یوه سجده ده
دا ژوند لکه سجده د تلاوت یوه شیبه ده
د زېړو زېړو پاڼو په کفن کې روانېږي
خزان ونې ولاړې دي د حسن جنازه ده
د کور په مخ به اوښکه وي که قلف ورَه پروت دی
له دې کلي نه بیا کډې روانې دي جگړه
بسمله پاك الله نازله کړې له اسمانه
تپه د پښتنو بې پیغمبره معجزه ده

## د شیخ عبدالقادر جیلاني رحمه الله

## ویناوي

۱ــ ستاسو لوی دښمن ستاسو بد ملگری دی.

۲ ــ ښېگڼه هغه ده چې له خلکو نه یې دستاینې هیله ونه شي.

۳ ـ دنیك كار پیل ستاسوکار دی اوپای یې الله پاك ته پرېږدئ.

۴ ــ که دخدای پاك نژدې والی مو خوښ وي نوپرمخلوق یې لورینه وکړئ.

۵ ــ د نفس په ناروا غوښتنو سر مه گروئ که نه له تباهۍ اوهلاکت سره به مخ شئ.

٦ ــ له ویجاړو قبرونو نه عبرت واخلئ، ځکه چې دډېرو ځوانانو هډوکي پکې خاورې شوي دي.

۷ ــ دمرگ یادول دنفس دټولو رنځونو ښه درملنه ده.

۸ ــ ښه عمل نورو ته ورکړه ده ، نه ، له نورو نه غوښتنه .

۹ ــ مؤمن خپل کورنۍ الله پاك ته سپاري او منافق یې جائیداد اوشتمنۍ ته.

۱۰ ـ ستاسوغیبت کونکي په حقیقت کې تاسوته گټه رسونکي دي، ځکه خپلې ښېگڼې ستاسو دعمل پر پاڼه لیکي.

۱۱ ــ درزق هغه پراخوالی چې شکر پرې ونه اېستل شي اودژوند هغه تنگسیا چې صبر پرې ونه شي دفتنې اوفساد سبب گرځي.

۱۲ ــ دنفس دغوښتنو په نیلي مه سپرېږئ ځکه چې دابه مو دهلاکت کندې ته وغورځوي.

۱۳ ــ نیکي داسې ډیوه ده چې د دوست او دښمن دواړو ودانې یوډول رڼا کولای شي.

۱۴ ــ کینه د ایمان جرړې باسي اوانسان دالله پاك له رحمت نه بې برخې کوي.

۱۵ ــ هوښیار لومړی زړه پوښتي اوبیاپه ژبه خبرې کوي.

۱٦ ــ کله چې یوڅوك تاسې ته دچا خبره راورسوي نو ویې رټئ او ورته ووایاست چې ته خو ترهغه ډېر بد یې ، ځکه هغه خو خبره په غیاب کې کړې وه اوتا نیغ په نیغه مونږ ته راورسوله.

۱۷ ـ د الله پاك عبادت وکړئ اودهغه له ذات نه وویرېږئ ، له بل چا مه ویرېږئ .

۱۸ ــ خپلې ټولې هیلې او اړتیاوې د الله پاك په وړاندې کېږدئ او هرڅه له هغه نه وغواړئ، له هغه پرته پر بل هیچاباور اوتکیه مه کوئ.




# د سعودي پر ضد د امریکا نوې طرحه؛

## اصل ارادې څه دي؟

حسن مومند

دامریکا کانګرس یا ولسي جرګې دراپوپه اکثریت دجاستاپه نوم نومول شوې هغه طرحه تصویب کړه چې د۱۱ستمبر په پېښې کې دسعودي عربستان پښه شریکوي.

داطرحه په تېر ۲۰۱۵م کال کې دامریکا دمشرانو جرګې ته وړاندې شوې اود روان ۲۰۱۶ م کال په مئ میاشت کې دې جرګې تصویب کړې وه ؛ وروسته بیا دستمبر په ۹مې نېټې ولسي جرګې هم دراپوپه اکثریت ومنله.

دستمبر په ۲۳ مې نېټې دامریکا ولسمشر بارک اوبامادخپل ځانګړي ولسمشریزواک پرکارولو داطرحه ویټو کړه خو دامریکا دمشرانو جرګې اوروسته ولسي جرګې داوباما ویټو مسترد کړه اودرایوپه اکثریت یې دا طرحه بیا تصویب کړه .

دقانون داطرحه په ولسي جرګې کې د۷۷ مخالفورایوپه مقابل کې په ۳۴۸ موافقو رایوومنل شوه .

دقانون داطرحه چې د Justice Against Sponsors of Terrorism Act (Jasta) یاني دترهګرودتمویل کونکوپرضد دعدالت قانون په نوم نومول شویده چې په دواړوجرګه ګیو کې دمنل کېدونه پس یې اوباما ددوهم ځل لپاره دردولوصلاحیت نه لري نو داطرحه به له دې نه پس دقانون برخه وي.

د۱۹۸۳م نه پس داړومبی ځل دی چې دامریکا دولسمشر دویټوسره سره هم په مشرانو اوولسي جرګوکې یوه طرحه تصوېبېږي .

اوباما دخپلې واکمنۍ په تېرې او اوسنۍ دواړو دورو کې داسې ۱۱ طرحې ویټوکړیدي چې یوائې همدا یوه یکې داسې ده چې دولسمشر دویټوحق دواړوجرګو رد کړ اوپه قاطع اکثریت یې دا طرحه بیا ومنله ؛ ددې طرحې دقانوني حیثیت غوره کولونه پس به د ۱۱ستمبر په پېښې کې دوژل شویوامریکایانو دکورنیو غړي دخپلومړو شویو تناونودتاوان اخستلولپاره دتولو هغو هېوادونو پرضد دامریکامحاکموته رجوع کولی شي چې اتباع یې دامریکاپه وینا پدې پېښې کې ککړ وو.

دامریکا په وینا د ۱۱ستمبر په پېښې کې ۳زره تنان وژل شوي وو او دحملې کونکوشمېر ۱۹ تنانوته رسېدلوچې ۱۵ تنان یې دسعودي عربستان اتباع وونو ځکه داطرحه په ځانګړې ډول دسعودي عربستان پرضد پلان شوی طرحه ګڼل کېږي .

**دامریکا په محاکموکې چې دهرعارض په حق کې دسعودي پرضدپرېکړه وشي نوتاوان به ورته دسعودي دهغو شتمنیو نه ورکولای شي چې امریکا کې یې لري اوحجم یې ۷۵۰ملیاردو ډالروته رسېږي**

**نوځکه ویل کېږي چې ددې طرحې هدف دادی چې د ۱۱ستمبر په پېښې کې دسعودي لاس لرل ثابت او په امریکا کې یې د۷۵۰**

**ملیاردو ډالرو په ارزښت ټولې شتمنۍ کنګل کړای شي.**

سعودي عربستان په نړۍ کې د امریکا له مهمو اتحادیانو څخه ګڼل کېدلو او په تېرو ۴ لسیزو کې په ښکاره د دواړو هېوادونو ډیپلوماتیکې اړیکې ډېرې ګرمې وې.

له کومې نه چې په سعودي عربستان کې تېل کشف شویدي له هماغې ورځې نه ترننه یې دراویستلواوتصفې کاروبارټول کار دامریکا سترشرکتونه کوي اودسعودي دتېلو لویه برخه هم همدې امریکا ته ځي .

صدام حسین چې پرکویت حمله وکړه نوهمدا امریکا وه چې ځان یې دسعودي اوکویت ترټولونږدې دوست ښکاره کولو اودودستۍ دحق اداکولوپه موخه یې پرعراق حمله وکړه اودصدام حسین لښکرې دکویت نه شاتګ ته اړ شوې .

نورخوپېدې هرڅوک پوهېدل چې امریکانو دکویت اوسعودي سره حقیقي دوستي لرله اونه یې ددوستۍ پالل مطلوب وبلکې هدف دسعودي اوکویت په تېلوخپله کامله قبضه راوستل اوپه ټولې سیمې کې دشیطاني شوموپلانونو دتطبیقولو لپاره دلته دائمي اډې جوړول وو چې همداسې وه هم شول ؛ هماغه مهال چې امریکا په سعودي اوکویت کې فوځي اډې جوړې کړې ترننه شتون لري.

دعراق اوایران په جنګ کې د سعودي عربستان له لورې دعراق سره دمالي مرستوبه ګڼ نورعوامل هم ووخوله دي هم انکار نشي کېدای چې دا دامریکا غوښتنه هم وه .

پرافغانستان دروسانو یرغل دټولې اسلامي نړۍ لپاره یوه لویه حادثه وه ؛ دروسانو یرغل او د روسانوپرضد دمقدس جهادجریان په مسلمانانوکې جهادبیا راژوندی کړ ؛ دنړۍ په مسلمانانوکې ډېره بیداري رامنځته شوه ؛ دټول عالم په مسلمانانوکې ددین لپاره دځان اومال دقربانۍ ډېر لوی احساس راژوندی شواوعملاً دنړۍ ټولومسلمانانوپېدې جهادکې ډېرې مالي مرستې وکړې اوډېروزیاتوپکې دسرونوقربانۍ ورکړې چې سعودي عربستان ددوۍ ټولوپه سرکې و؛ افغانان ددوۍ ټولوقربانیوته ډېردقدر په نظر ګوري اوترې منندوی دي .

دامرستې دعامومسلمانانوې اوکه ددولتونو وې دواړوته موږ دقدرپه نظرګورو اودهیچا په نیتونوشک نه کوو خوله دي هم انکارنشوکولای چې همدا دامریکا غوښتنه هم وه ؛ روسانو دافغانانو دستروقربانیواودمقدس جهادپه برکت په افغانستان کې ماتې وخوړه خودروسانوماتې خوړل چې دامریکا خواهش اوحاجت ونوددې لپاره چې داحاجت اوخواهش یې پوره شي دنړۍ له ټولواسلامي هېودونو یې غوښتل چې دافغانانوسره دروسانو پرضدمرستې وکړي چې سعودي عربستان ددې ټولوهېوادونوپه سرکې و اوتر ټولوزیاتې مرستې یې کړې وې.

پدې حقیقت هم باید اعتراف وکړوچې دشیخ اسامه بن لادن رحمه الله تعالی په شمول دافغانستان نه دټولوستنوشویو مجاهدینو پرضد چې سعودي عربستان څومره سخت ګامونه پورته کړل نوایله هغه وخت یې پورته کړل چې دامریکاهدف پوره شواودسعودي عربستان نه یې ددوۍ پرضد د سختو ګامونوپورته کولوغوښتنه وکړه ګینې په پیل کې همدې ستنوشویومجاهدینوته په سعودي کې ډېر دقدر په نظر کتل کېدل .

خولنډه داچې په تېروکابو۴ لسیزوکې چې امریکا سعودي ته اړتیا لرله نو اړیکې یې ورسره ډېرې ښې ساتلې اوسعودي یې هم یوه غوښتنه هم نه ردوله .

سره لـه دي چـې د ۱۱سـتمبرد پېښې په بريدګروکي دامريکا په وينـا ۱۵ تنـان دسـعودي اتبـاع ووخوپـه تېـرو۱۵ کلونـوکي هيڅکلـه هـم امريکاپدې پېښې کې د سعودي دلاس لـروخبره نـه وه کـړې ؛سـعودي عربستان هم بيابيا داخبره کړېده چې پر امريکا حملې دحمله کونکوشخصي عمل دی اودسعودي عربستان ددولـت دې حملوسره هـيڅ تړاونشـته اونـه دحملـه کونکودسـعودي ددولـت سره تړاوشته .

ددې پېښـې پـه اړه د امريکـا د امنيتی ادارو لـه لـوري خپـور شـوی راپور چې په ۹ سوه مخونو مشتمل و پکې په واضحو ټکو ليکل شوي ووچې داسې شواهد نشته چې پدې پېښې کې د سعودي ددولت يادولت دکوم لـوړ پوړي چـارواکي د لاس لرلـو لپـاره د ثبوت په ډول وړاندې کړای شي.

هو! مکـارې امريکاهغـه مهـال ويلي ووچـې ددې راپـور ۲۸ مخونـه داسې چې د( هغه مهـال) ولسمشـر بش اداري خورا ډېرحساس ګڼلي او له خپرولو يې منع کړی.

شنونکي پـدې عقيـده دي چـې ددې ۲۸ مخونو دنه خپرېدا خبره بـه ددې لپاره دسيسـه وي چـې کـه يـو وخت دسعودي په شمول دهراسـلامي هېوادراښکېلول وغواړي چې راښـکېل يې کړای شي او وايـې بـه چـې هغـه ۲۸صفحې چې لـه خپرولـو يـې ډډه شـوی وه پکـې راغـلي ووچـې دې هېـوادهم پـه يـوډول دډولونـو د بريدګرو مرسته کړې وه.

لنډه داچـې پـه ښـکاره امريکـا دسعودي په اړه مطمئنـه ښـکارېده ؛ سعودي يې پدې پېښـې کـې پـه لاس لرلونه و تورن کـړی او سـعودي يـې چـې پخـوا لـه مهمواتحاديانوڅخـه وددې حملې نه پس يې هـم هماغسـې دمهمواتحاديانوڅخه پـاتې واوهيڅـا داګومان نه کاوه چې ۱۵ کاله پس بـه ګيني په امريکاکې دسـعودي پرضـد کومه طرحه رامنځته شي خوداچې په ټولې نړۍ کې امريکايـان سـخت بـې اعتماده ؛ مـاده پرسـت ؛بـې اعتبـاره اوبـې وفـا خلـک دي نـو دسـعودي ددوستۍ يې هـيڅ پـروا ونـه سـاتله اوددې هېواددواړوجرګودرايوپه قاطع اکثريت دسـعودي پرضـد دا طرحـه تصويب کړه.

ددې طرحې د ويټو کولوپرمهال ولسمشرـ بـارک اوبامـاويلي و چـې دامهال چې دنړۍ په مختلفوبرخـوکې ډېرو شورشونو سر راپورتـه کړيـدی ددې طرحـې پـه تصـويب دامريکـا يومهم اتحادي شايدډېرخفګان ښکاره کړي اوترڅنګ يې په بهرکې دامريکـا بانکونه ،شرکتونه ، فوځي اونورمشران هم دقانوني کړنوسره مخامخ شي .

خو ولسي جرګې دولسمشرـدې خبروڅه پروا ونه سـاتله اودولسمشرـ ويټويې ښه په سپين سترګۍ درايوپـه اکثريت ردکړه .

داچې په سعودي عربستان کـې دمسـلمانانو ترټولومقـدس مقامـات حرمين شريفين شتون لـري نـودنړۍ ټول مسلمانان ورته دخورا ډېر قدرپـه نظرګـوري چـې داحقيقـت لـه پامـه دغورځولوندی ؛ ددې ترڅنګ سعودي عربســـتان د(O.I.C ) اســـلامي کانفرانس اودخليجي هېوادونودتنظيم ګلف کوآپريټوکونسل مهم غـړی هـم دی چې په نوموړي تنظيم کې شـامل ټول مهم غړي دامريکا پدې اقدام خفه شـــويدي اودمتحـــده عـــرب اماراتودباندنيوچارو وزيرپرامريکـا انتقـادکړی او ويـلي يـې دي چـې دامريکا دا اقدام په يولحـاظ هـم سـم اقدام ندی اوله دې امله به (ددوئ پـه وينا ) دتروريزم پرضد پـرروان جنـګ بدې اغېزې وشي .

ددې طرحـې دمخنيـوي لپـاره داوبامـا اداري دمنافقـت نـه ډکـې نمايشـې هڅـې هـم کـړې وې ؛ د جمهوري غوښـتونکواو ديموکراتـانو دواړو ګوندونو سره دتراو لرونکـو د جرګو غړو نه يـې غوښـتي وو چـې

ددې طرحې په حق کې دې رایه نه ورکوي.

همدا راز د دفاع او باندنیو چارو لوړپوړو مشرانو هم د مشرانو جرگې پر غړو غږ کړی وچې ددې طرحې د منظورېدا مخه دې ونیسي ؛ که ددې طرحې مخه ونه نیول شوه او د سعودي پر ضد کومه جدي قانوني کړنه تر سره شوه نوورسره به د امریکا دیپلوماتیک او اقتصادي حالات خراب شي.

خوداچې دایواځې نمایشي خبرې وې نوځکه یې هیڅ اثر نه و.

هغه مهال سعودي عربستان هم امریکا ته د سخت عکس العمل ښکاره کولو اخطار ورکړی و؛ واشنگټن ته د سفر پر مهال د سعودي عربستان د باندنیو چارو وزیر عادل الجبیرد امریکادولتي چارواکو ته په روښانه ټکو ویلي و چې که امریکا د سعودي پر ضد د کوم اقدا م اراده وکړه نو سعودي به په امریکاکې خپلې ټولې شتمنۍ وپلوري .

ددې اخطارله لارې د سعودي دولت د امریکا پر ضد سخت موقف ښکاره کړی ونواوس چې داطرحه دواړو جرگوتصویب کړه معلومه نده چې سعودي به ربښتیا هم داسی اقدا م وکړي؟ او که د کولو اراده یې ولري نو آیا وبه توانیږي ؟ دا به هغه وخت معلومه شي چې له دواړولوروعملي اقدامات پیل شي .

د۱۱ ستمبردپیښې سره دسعودي ددولت هیڅ تړاونشته خوبیا هم دسعودي ددولت پرضداقدامات او دسعودي دملي خزانې نه دپیښې قربانیانو ته تاوان ورکول قانوني کارگڼل کېږي نو

په افغانستان کې دبې گناه سونو زروشهیدانوشویومسلمانانو کورنیوته هم بایدحق ورکړی شي چې دامریکا اونوروائتحادي هېوادونوپرضد محاکموته رجوع وکړي اودخپلو شهیدانو دیت وغواړي ؛ آیا امریکا، برتانیه اونوریرغلگرهېوادونه به افغانانو ته داحق ورکړي ؟

پرعراق دامریکا دړومبني یرغل په جریان کې په سونو زره عراقیان شهیدان شول ؛ دجنگ نه پس پرعراق دلگېدلیو اقتصادي بندیزونوپه پایله کې دنړیوالو اداروډورکړل شویو راپورونوله مخې دپنځو لکونه زیاتو کوچنیانو ددوا اوخوراکي موادو دنشتوالي له امله خپل ژوند له لاسه ورکړ .

امریکا اوپه لسگونونوردنړۍ نا اسلامي هېوادونه داتومي ځواک دجوړېدلو اوله ځانونوسره دزرونو اتوم بمونوساتلوحق لري خوداسلامي نړۍ نه داحق سلب شوی نوامریکا ،برتانې اونوروصلیبي هېوادونوپه عراق کې داتومي وسلوشتون پلمه کړاوپه ۲۰۰۳م کې وربانډې یرغل وکړ چې پخپله دلویدیځوالوادارو له لورې دخپروشویو راپورونو له مخې دیرغل نه تر اوسه پدې هېوادکې کابو یونیم ملیون عراقیان وژل شویدي ؛ امریکا پخپله اعتراف کړیدی چې دعراق سره دکیمیاوي موادو دشتون ټول راپورونه دامریکا دجاسوسې اداري له لورې په جوړوشویو دروغو ولاړ وو.

پرعراق دحملې په اړه دبرتانې ددولت له لورې ټاکل شوي څېړنیز هیئت کابومیاشت وړاندې اعلان وکړچې دهغه مهال دبرتانې لومړي وزیرټوني بلیر په عراق کې دعامه وژونکو وسلودشتون په اړه ملت دروغ ویلي وو .

**دلته خودامریکا ،برتانې یا نورویرغلگروهېوادونو ځوداسې افرادویاداسې تنظیم داعامه وژنې ندي کړي چې دخپلوهېوادونو ورسره هیڅ لاس نه وي بلکې داعامه وژنې پخپله دولتونوکړیدي نوآیا دا دولتونه به ددې وژل شویوملیونونو بې گناه انسانانو**

کورنیوته دا اجازه ورکړي چې دمحاکموته رجوع وکړي اودخپلومظلوموقتل شویو خپلوانو دیت وغواړي ؟

نه هیڅکله هم نه !

ځکه چې په عراق ، افغانستان اونوروا سلامي هېوادونو کې دامریکا ،برتانې اونوروصلیبي یرغلګروپه لاس وژل شوي ټول وګړي دمسلمان ملت بچي دي؛ هغه ملت چې دوئ یې پرضد صلیبي جنګ اعلان کړیدی ؛ دمسلمانانو قتل عام ؛ دخپلو کورونونه یې بې کوره کول ؛ آبادښارونه یې ورانول اقتصادونه یې تباه کول دولتونه یې ړنګول ؛ په داخلي جنګونویې اخته کول اوهېوادونه یې تجزیه کول ددې جنګ نه جداکېدونکی برخه ده .

داهغه وخت دی چې امریکادټول بشر-دغلام ګرځولوخوبونه ویني نودنړۍ ټولې پرېکړې پخپله کول اودخپلوموخواوګټوتابع کول غواړي ؛ قاتله هم پخپله ده ؛ قضاوت هم پخپله کوي اودټولې نړۍ په باره کې پخپله خپل ځان ته دپرېکړوحق هم ورکوي .

خوافسوس دملګروملتونوپه اداري، دجنېوا پرکنونسیون ادلویدیځو هېوادونو دټولوهغو ادارو پرحال چې دبشردحقوقو د اعادې اوتامین لویې دعوې کوي خودبشریت پرضد دداسې لویوظلمونوپرمهال چوپه خوله وې اوخپل یوفیصد مسئولیت هم نه اداکوي .

خوددې نه هم زیات افسوس دهغه اسلامي هېوادونوپرحال چې لا یې هم امریکاته ددوستۍ لاسونه ورکړیدي او دداسې پېښونه هیڅ عبرت نه اخلي.

دیادولووړ ده چې ددې طرحې درامنځته کېدونه لا لږه موده وړاندې هم دسعودي اوامریکا په روابطوکې درزونه رامنځته شوي وو؛ دایران د اتومي پروګرام په اړه د امریکا او ایران تر منځ د توافق رامنځته کېدو، پر ایران د لګېدلو اقتصادي بندیزونو د لرې کېدو او د یمن د ستونزې په شمول په ځنې سیمېزو مهمو مسایلو کې د سعودي عربستان د پالیسی نه د امریکا نه حمایت لادمخه دسعودي عربستان او امریکا اړیکې دومره خړې پړې کړ چې په رسنیو کې یې هم اثرات ښکاره شول او خبره د یو بل پر ضد دځرګندونویا لفظي شخړې ترحده ورسېده .

د ایران او سعودي عربستان خپلمنځي روابط اوس تر بل هر وخت زیات تر ینګلي دي.

په سعودي کې چې شیعه ملا شیخ نمرالنمر ته دمرګ سزا اوبیاپه تهران اومشهدکې دسعودي پرسفارت اوقونسلګرۍ دایراني مظاهره چیانودحملې نه پس دسعودي عربستان او ایران ترمنځ دیپلوماتیکي اړیکې پرې شوې نو سعودي تمه لرله چې پدې سخت حالت کې به یې امریکا تر شاودرېږي او پر ایران به د امریکا او نورلویدیځ فشارونه زیات شي خو د سعودي د تمې خلاف امریکا نه یواځې دا چې پدې لانجه کې د سعودي تر شاوندرېدله بلکې د ایران سره یې دخپلو روابطو دښه کولوسفر جاري وساتلو .

همدا راز سعودي غوښتل چې په شام کې دبشارالاسداوپه یمن کې دحوثیانونه په حمایت کولودې لویدیځ اوپه سرکې یې امریکا ایران ته سزا ورکړي یادې لږترلږه دومره فشار وربانـدې راولي چې دبشارالاسد اوحوثیانودحمایت نه لاس واخلي خو دسعودي دې یوې غوښتنې ته هم امریکا اونورلویدیځ نه یواځې داچې التفات ونکړبلکې برعکس دایران اولویدیځ روابط دیوې نه بلې ورځې ته په ښه کېدوشول.



د اتــومي لانجــې پــه اړه يــې د ايران سره توافــق رامنځتــه شــو او د لويديځ اوملګروملتونوداداري له لورې پــر ايــران د لګــول شــويو اقتصــادي بنــديزونو د لــرې کولــو پــه اړه يــې رضامندي هم ښکاره کــړه چــې پــدې سره د ســعودي او امريکــا تــر مــنځ روابــط مــخ پــه خرابېــدو شــول او د خرابېدلو تر هغه سرحده ورسېدل چې له امله يې په رسنيو کې د يــو بــل پــر ضد څرګندونې هم وکړې .

**نو دا رښتيا ده چــې ســعودي عربستان دايــران پــه اړه دامريکــا ددريځ نه ناراضه دی چې څه موده دمخــه دســعودي ددولــت يوعــالي رتبه غړي خپل دا نارضايت ښه پــه روښــانه ټکوښــکاره کــړی هــم و اوويلي يې و چې ايران هرڅه کوي امريکا يې په مقابل کې هــيڅ نــه وايې اوپه پټه خوله ورروسته کيږي ؛موږ ددې هــيڅ پروانــه لــرو چــې امريکا په څه غصه کيږي يا خفــه کيږي ؛ داسمه ده چې موږدسپينې مانۍ موقف ته دقدرپه نظر ګــورو خودخپلو ګټــودتحفظ لپــاره مــوږ دتهران پرضدهر ډول اقدام کولوتــه تيار يو.**

سعودي پدې عقيــده دی چــې د منځني ختيځ په اړه د امريکا سياست

کې بيخي بدلون راغلی د ی ،امريکا په ښکاره مصر ،سعودي عربستان ،قطر، کويت،اردن،او نــور عــربي هېوادونــه خپل اتحاديان بولي او د دې هېوادونو سره خپلی ديپلوماتيکې اړيکې هم ښې ګرمــي ســاتي ؛پــه خولــه ايــران تــه ګواښونه کوي خو په پټه يــې لاســونه ايران تــه وراوږده کړيــدي او غــواړي چې ايران د سيمې يــواځني ځــواکمن هېــــواد وګرځــــي ؛ د ســــيمې ټــــول هېوادونه وربانديې د تل لپــاره تهديــد کړی او دا هېوادونه خپل ځان تــه لــه همدې لارې سخت محتاج وســاتي نــو ځکه يې د ايران د اتومي پروګــرام پــه سر توافق وکړ، اقتصادي بنديزونه يې ورنه لرې کړل ، په امنيت شورى کې د ايران د اقداماتو حمايت کوي او ايــران چې دتوغندو نوې ازموينې وکړې او د روسې نه تــر لاســه کــړی ايــس ۳۰۰ توغنــدو تشــهير کــوي، حــزب الله او حوثی ملېشو ته وسلې ورکــوي او د بشارالاسد د ادارې حمايــت کــوي نــو پدې هر څه امريکا سترګې پټې کړيدي او يواځې پدې يې توجيــه کــوي چــې ايران ددې مسائلو د حل کولــو هڅــې کوي.

امريکافکرکوي چې د ايــران سره د روابطو په ښه کېدو امريکا ته د تېلو متبادله داسې ښه منډۍ په لاس ورغله چې ورنه خپله ټوله اړتيا پوره کــولای

شي نو ځکه يې د سعودي نه مخ اړول پيل کړل او پر ايران يې مهربــانۍ مــخ په زياتېدو شوې.

خوخبره يواځې دتېلو نده ؛ څوک چې دسيمې حالات له نېــږدې څــاري هغوئ ټول پدې پوهېږي اوواېي چــې اوس په ټولې ســيمې کــې د امريکــا د اميد سترګې يواځې د ايــران پــر لــور دي.

که رښتيا ووايوامريکا ته په ټولې آسيا کې له ايران پرته بــل يــو داســې هېواد هــم نــه ښــکاري چــې د خپلــو موخو لپاره يې وکــاروي او يــا يــې د خپلو مخالفينو پر ضد استعمال کړي ، پــه آســيا کــې د امريکــا د اتحاديــانو اکثريت پــه فــوځي لحــاظ د کمــزورو هېوادونو دی ؛اوکه کوم هېوادېکې پــه فوځي لحاظ ځــواکمن دی نــو د هغــه پالــيسي بيــا داســې نــده چــې کــوم ځواکمن هېواد سره د ځان لپاره کومه ســتونزه وزېــږوي او يــا د امريکــا د موخو لپاره ځان خطرونو سره مخامخ کړي خو برعکس د ايران دريــځ کــې سختوالی زيات دی او په تېرو وختونو کې يې تل د خپل ځان نه ډېــرو لويــو ځواکونــو تــــه ګواښــــونه کــــړي او اخطارونه يې ورکړيدي نو ځکــه يــې امريکا په اړه دا کلکه تمه لري چې که په فوځي لحاظ ښه ځواکمن شي نو نه يواځې د ســيمې کمــزوري هېوادونــه

بلکه د چین،پاکستان ، روسي او هندوستان په څېر ځواکمن هېوادونه پرې هم تریوحده په اسانۍ تهدیدولای او د دوئ پر ضد ترې په اسانۍ کار اخستلای شي.

داچې داسلام اومسلمانانو پرضد دامریکاله لورې په پیل شوي صلیبي جنګ کې شیعه ګان نه یواځې داچې دامریکاپرضد دمسلمانانوپه پیل شوي مقدس جهادکې شریک نشول بلکې برعکس واک ته درسېدلو په موخه یې په افغانستان اوعراق کې یې دامریکا اونورو اتحادي اشغالګروسره لاسونه یوکړل نو دامریکا اونورلویدیځ ډېراعتماد یې ترلاسه کړاو ورته یې په عمل کې ښکاره کړه چې دلویدیځوز برځواکونودهر اشغال لپاره ډېرښه خدمتګاران ثابتېدای شي.

زما هدف داندی چې ایران به ګینی په غیرشعوري توګه دامریکا دګټولپاره استعمال شي ؛ ایرانیان دومره بې شعوره خلک ندي چې پرځان به نه وي پوه اودنورودګټولپاره به استعمالېږي ؛ بلکې ایران خپلې موخې لرې اوډېرې زیاتې هڅې کوي چې دروانوحالاتو اودامریکا داقداماتو نه دخپل ځان لپاره ګټه پورته کړي ؛ قرائنو ته چې وګورونودمنځني ختیځ په اړه اوس دایران پالیسي دا ده چې باید نفوذیې توله سیمه ومني ؛دایران دپالیسی ددې تسلسل پټ ساتل ایران اړین ندي ګڼلي اونه یې دپټ ساتلوهڅې کړیدي ځکه چې ایران دمنځني ختیځ دکوم هېواد پروانه ساتي اونه یې په نظامي لحاظ دځان سیال بولي اونوره نړۍ خویې هسې هم ددې تسلسل دجاري ساتلو طرفداره ده.

دتېرکال په وروستیو میاشتو کې چې حوثي باغیانو په یمن کې پرمختګونه وکړل اوپه شمالي برخوکې یې دایران بیرغونه پورته کړل نوځوځلې دایراني مشرانوله خولو نه په ډېرافتخارداخبره راووتله چې دبغداد ،دمشق اوبیروت نه پس اوس صنعاء هم زموږ دنفوذ سیمه وګرځېدله.

څه موده وړاندې خودعلی یونسي- په نوم دایران یوپخواني وزیرپه تهران کې یوسیمینارته دویناپرمهال تردې حده وړاندې ولاړ چې ویې ویل ،،تول منځنی ختیځ زموږدنفوذ سیمه ده اوموږدشرقي رومیانو، عثماني ترکانواوعربو سلفیانوسره په یو وخت کې دجنګ کولو توان لرو .

شنونکي پرځای وایي چې په عربي نړۍ کې داوسنیو ګډوډیوتوله ګټه امریکاته رسېږي خودامریکا نه پس چې ترې ترټولوزیاته ګټه پورته کړه هغه ایران دی ځکه چې دجنګونواوګډوډیوپه نتیجه کې دسیمې دهېوادونودکمزوري کېدلوله امله ایران اوس دپېړیوپخواني دفارس دسلطنت دبیا احیاخوبونه ویني اوپه رومبي ځل ناعربي قوم ؛ بل هېواد اوبل تهذیب (ایران) دعراق ،شام ،لبنان اویمن په څېرمشهورو عربي سیموکې ترسترګو کېږي .

دایران له مقتدروحلقونه اوس دا نارې هم اورېدل کېږي چې پرحرمینودسعودي خاندان دقبضې دله منځه وړلو اوددې خاندان دخاتمې وخت رارسېدلی دی.

ماته دا اندېښنه بېځایه نه ښکاري خوځه فکر کوم که داسې اراده موجوده هم وي عملي کېدل یې ناشوني دي اوپدې امریکااونور لویدیځ هم ښه پوهېږي چې په ټولیزه توګه دشیعه ګانواوپه ځانګړې ډول دایران پرضد په سني عربانوکې ډېره زیاته کرکه شتون لري اوورته په سیمه کې دشیعه ګانو حاکمیت هیڅکله هم دزغم وړندی چې عراق یې ښه بېلګه ده امریکاپېږي هڅې وکړي خودمالکي شیعه اداره یې کامیابه نکړای شوه اونه امریکا اودبغداد اداره پدې وتوانېده چې دلته دسني مجاهدینو روان جهادي بهیرکمزوري کړي .



هو! دایران دمداخلو پراخول او پــه مــداخلو ســترګې پټــول بــه روان وي خوددې هیلی سره نه چې ټوله سیمه یې ترنفوذ لاندې راشي بلکې هــدف بــه لــه دې لارې دلتــه دفرقــه ایــزو منــافرتونو زیاتوالي ته لاربرابرول اوبیا ټوله ســیمه دجنګ په ډګربدلول وي.

دمنځني ختیځ په اړه دامریکا په پالیسۍ کې دهمــدې بــدلون لــه املــه ســعودي دامریکــا اونورلویــدیځ نــه ســخت نــاهیلی شــوی اوخپلــه ټولــه توجویې اوس عربي نړۍ ته را اړولــی ده ؛ اوس ددې لپــاره ډېــرې زیــاتې هڅې کوي چــې دټــولې عــربي نــړۍ حمایت ځان ته راجلــب اوپرځــان یــې راټوله کړي .

سره لــــه دې چـــې دســـعوي اوامریکـــا روابـــط خـــراب شـــوي وخوګومان کېدلوچې تاو تریخوالی به ترهمدې حده وي اوله لفظـي شـخړې به وانوړي ځکه چــې د یــو بــل نــه د ګیلو نااندرو یا لفظي شخړې اخوا د یو بل پرضد اقــدام هیڅــا ګټورنــه ګڼلــو خوسعودي تــه د امریکــا دولسمشرـ اوباما د سفر پر مهال معلومــه شــوه چې خفګان زیات اوپــه روابطــو کــې رامنځته شوي درزونه لوی دي .

هو! د روان کال د اپریل میاشــتې په ۲۰ مې نېټې چې د امریکا ولسمشرـ بارک اوباما سعودي عربســتان تــه پــه دوه ورځني ســفر راغلــی و د شــهزاده خالد پــر هــوایي ډګــر دښــکته کېــدو پرمهال یې هغســې هرکلــی و نــه شــو څنګه به چې په تېرو وختونو کې پــدې هېواد کې د امریکا د ولسمشر کېدلو.

دې هېواد ته د امریکا د ولسمشر د راتلو په اړه د ســعودي دولــت هــیڅ جوش او جذبه ښــکاره نکــړه او د دې پر ځای چــې اســتقبال تــه یــې باچــا سلطان بن عبدالعزیز تر هوائې ډګــره ورغلی وای هغه ورنغلو بلکې د ریاض والي شهزاده فیصل بن عبدالعزیز او د باندنیو چارو وزیر عادل الجبیر یې پر هوایي ډګر هرکلی وکړ.

د شهزاده خالد پر هوائې ډګــر د طیارې نه د اوباما د راکوځېدو ســحنه سعودي رسنیو د یو عادي خبر یایوې عادي پیښې په څېر خپره کړه او نــور یې ورته هیڅ توجو ونکړه.

د امریکا ولسمشر د هوایي ډګــر نه نېغ دباچا قصر ته ولاړ ؛ یو بل سره د لیدلو پر مهال دواړو مشرــانو خپلــو کــې سره دوه ســاعته اوږدې خــبرې وکړې خو ددې لېدنې کومــه کــوچنۍ لمحه هم په برقي رسنیو کــې نشرــ نــه شوه او نه د دواړو مشرانو تر منځ د خبرو داجندا په اړه څه وویل شول.

خــودا چــې تراوســه امریکــا اوســعودي دواړو کــې یــو هــم دبــل پرضد تېزه لهجه نه وه کارولې نو لــه یو لوري هم کوم عمــلي غبرګــون نــه وښودل شوی او تمه کېدله چــې د دې دواړو هېوادونو روابط به بېرته عــادي حالت ته وروګرځي خو په تېرو ورځو کې چې د امریکــا دمشرــانو اوولسيــ دواړوجرګویاده طرحه تصــویب کــړه اوپه مقابل کې یې سعودي دامریکانــه دخپلوشتمنیودراویســـتلوخبره وکــړه نواوس تمه نه کېږي چې دا روابط به بېرته عــادي شي بلکــې لا بــه پســې خراب شي .

هو !دسعودي لپاره په هرلحــاظ داخــبره ګټــوره ده چـــې دصــلیبي لښکرودسرلښکر،دملیونومسلمانانوقاتل امریکاسره دوستۍ تــه دپــای ټکــی کېږدي ؛ نه یواځې عربي بلکــې ټــولې اسلامي نــړۍ تــه خپلــه ټولــه توجــو راواړوي؛ دنورو خلکونــه پــه رانیــول شویوطیارو ، وسلواومادي وسایلوونه غولېږي اودیو اسلامي هېــوادسره هــم په جنګ کې ځان اخته نکړي.

هغــه اســلامي هېوادونــه چــې دامریکا په دوستۍ خــوښ اومطمــئن دي ؛ پرې دخوښۍ اظهارکوي دهغوئ لپاره ډېر دعــبرت مقــام او ددې ښــه موکه ده چې دامریکا په دوستۍ بیا له سره غــوروکړي اوپــدې پــوه شي دامریکا هیڅ هم داعتبار وړ ندي .

دوهمه برخه

داسلامي نړۍ ثقه عالم مولانا سيد ابو الحسن علي ندوي ژ: ابوظهير لومړۍ برخه

# دلويديځ د نړيوالتوب

## او دجديديت ځپلو لاملونه او دهغو درملنه

دislam in modern historyکتاب مصنف (w.c. smith) هغه څوک دی چې په اسلامي هېوادو کې د مختلفو کارکوونکو د ميلانو اود جلا بلو تېلو په باب نوي معلومات لري ، نومـوړي د اسلامي هېوادودننه دنوي غربي تعليمي نظام او دغربي تعليمي مرکزونو دژور ذهني اثر رلوا عتراف کړی ، موصوف اسلامي هېوادو کې دازادۍ خوښوونکو (Liberalism) په اړه وايي:

اسلامي هېوادو کې د ازاد خيالۍ او حريت پالنې په نوم کوم خوځښت روان دی، يو قوي لامل او اهم عامل (FACTOR) يې هلته دلويديځ نفوذ دی، اروپا کې دازادۍ خوځښت دنولسمې پيړۍ له وروستيو نيولې ترلومړي نړيوال جنګ دعروج په وروستۍ مورګه و او داروپا دترقۍ او تفوق يوعمده لامل دا هم دی چې پيړۍ مسلمان ځوانان دزده کړو لپاره لويديځ ته سفرونه کړي هغوی هلته داروپا د نويو پرمختياوو او دهغه ځای له ارزښتونو سره اشناکېږي اوپه بېره لالهاند ی سره يې دمندلو کوښښ کوي په خاصه توګه پر هغو زده کوونکو زيات اغيز فريباسي چې داروپا په پوهنتونو کې زده کړو بوخت دي ،د هم هغوی له لارې ګڼ اروپا يې توکي اسلامي نړۍ ته راغلل او هم هغه ښوونيزې ادارې په دې ډګر کې وراندې دي چاچې يو پوره نسل روزلی او بيا يې دلويديځ غيرې ورسپارليله لويديځه په راغلو ځېزونو کې هغه يوشمير نوي اندونه او نازک ،نرم اوخام ذهني اټکلونه هم شتون لري چې خپرول يې بېلابېل تعليمي مسؤليتونه لري اوپه پردې علاوه دلويديځ نور قانوني، سياسي اجتماعي او د نويو اداروپرمخ زياتيدونکی نفوذ دی چې ځيني په جبر سره مسلط کول غواړي او دځينو لپاره کوښښونه کړې مسلمانانو دځينو مقابله وکړه او دځينو يې هر کلی وکړ، اوځينو ته يې هم هغه روزنه ورکړه او ځينو په تدريجي توګه هغوته ښه راغلاست ووايه په نتيجه کې پيړی مسلمانانو دغه نظريات او اداري رښتينې اوګڼلې اوپه دې سره دمغربيت په پراختيا او خونديتابه تيزې راغله.

دځو مستثنی شخصيتونو ( لکه اقبال ، محمد علي جوهر اونور)پرته چې ابراهيمي فطرت او يا د ځينو خارجي پيبښو او اغيزې د ايماني نور او اسلامي فهم ساتنه وکړه چې له امله يې دهغوی دننه دغربي فکر او تهذيب په ضد سخت غبر ګون را وټوکيد په عمومي توګه دعربي او عجمي هېوادو ذهين ځوانان ( څوک چې دخپل ولس ګرانبيه سرمايه ده ) همدې تعليمي نظام داسې بدل کړل چې نه په سهي شکل اوصورت اسلام دهغوی په ذهن کې کيناست اونه په عامه اسلامي ټولنه کې کولی شول دعلامه اقبال په وينا:

فرنګی شيشه ګر ګی فن سی پتهر هوګی پانی.

په دې خبره اصرار چې اسلام دهر چا شخصي معامله ده، چې په سياست او حکومت کې يې دځايولو حق نلري له اسلام سره هم مسيحي کليسا ته ورته معامله کول غواړي،

ددین او سیاست دبیلتون مفکوره خورول غواړي اسلامي علماء دمسیحي کلیسا دهغو استازو په صف کې درول چې په منځنیو پیړیو کې مطلق العنان واکمن ول میرمن دنارینه سره له هره پلوه مساوي ګڼل او دژوند په ټولو ډګرونو کې او منډوترړو لپاره یې اهل ګرځول پرده ( که په هر شکل وي) دختیځ پخواني حرم یادګار او دنارینه وو دصنفي استبداد نښه ګڼل او دله منځه وړل یې دترقۍ او اصلاح په لړ کې لومړی ګام ګڼل د میراث په اړه اسلامي قوانین او ضابطه ،نکاح، طلاق دمنځنیو پیړیو داسلامي فقهاوو ا و د محدود دورې د ټولنې نتیجه ګڼل کومه چې په اتمه مسیحي پیړۍ کې جوړوه، په هغه کې دبدلون ، ترمیم او له غربي اصولو اومعیارونو سره سم یې جوړول دوخت مهمه فریضه ګرځول ، سود ، شراب ،قمار، جنسي- اړیکو کې ازادې اوبې قیدې معیوب نه ګڼل او پرې سترګې پټول دپخوانیو(اسلام څخه وړاندې) کلتورونو او ژبو د را ژوندي کولو جذبه او لاطیني رسم الخط ( لیکدود) ګټورتوب او او اهمیت بیانول او داسې نور ګڼ شمیر رجحانات (چې ددې نوي باسواده نسل په اند) دحقایقو او مسلماتو درجه لري او د روڼ اندۍ او پرمختیا علامت یې بولي مغربي تعلیمي نظام ( او محمد اسد صاحب په وینا) دهغه ذهني او فکري چاپیریال او فضاء او دهغه دتاریخي ورثې نتیجه ګرځول .

تاسوته چې له اندونیزیا څخه واخله تر ترکیې پورې داسلامي هیوادو څومره مشران په نظر شکاري ،ټول دهمدې غربي تعلیمي نظام زیږنده دي، په دوی کې ځینو ته مخامخ په لویدیځ کې دزده کړو فرصت یاچانس په لاس ندی ورغلی هغوی پخپلو هیوادو کې دهمدې تعلیمي نظام له مخلصانو او استازو څخه ګټه پورته کړې چې یوشمیر دهغوی نه په پوځي ښوونځیو او لیسو کې یې زده کړې کړیدي چیرې چې په پوره توګه غربي تعلیمي نظام لوستل کیږي .

همدا لامل دی چې نن سبا په اسلامي نړۍ کې د دوه ذهنیتونو، دوه فلسفو، دوه معیارونو، او دوه لوریو ترمنځ کشمکش روان دی کوم چې په عمومي توګه تل دیوې څواکمنې، وسلوالې او په واک باندې دقابضې ډلې په برې باندې منتج کیږي داکه هر څومره دافسوس وړده خو دتعجب وړنده ځکه تعجب هغه وخت و چې کله د جدیدت او دمغربیت په لورید ذهني میلان نه وای.

**په خواړوکې زهر:**

ددې درملنه( که هرڅو ګرانه او ځنډ غواړي) په بل څه نشي کیدای چې په تعلیمي نظام له سره بیا کتنه او ارزونه و نشي او دمسلمانو ولسونو دعقایدو ، مسلماتو، مقاصدو اوله اړتیاوو سره سم جوړ نشي.- او دټولو علومو او فنونو څخه یې دماده پرستۍ خدابیزارۍ، اخلاقي او روحاني اقدارو څخه دبغاوت او جسم پالنې روح وویستل شي اوپکې دخدا پرستۍ خدا طلبۍ او دانسانیت روح پو کړای شي دژبې او اداب څخه نیولې تر ترفلسفې او ارواپوهنې پورې او له عمراني علومو څخه واخله تر اقتصادیاتو اوسیاسیاتو پورې ټول یونوي قالب ته واچول شي مغربي ذهني واکمنې لري شي او دمعصومیت او او قیادت نه یې انکار وکړای شي او هم په علومو او نظریاتو یې دازازدانه تنقید او جرئت مندانه تشریح لپاره ګام پورته شي دلویدیځ دبرترۍ او سیادت څخه انساني نړۍ ته چې کوم ستر زیانونه رسي هغه په ګوته کول غرض داچې دمغرب په ستر ګو کې سترګې اچول او بیا یې علوم اوفنون لوستل اوله علومو او تجاربونه دخامو موادو(RAW MATERAL)په حیث کار اخستل اود هم دخپلو اړتیاوو ، عقیدې او ټولنې سره سم یې چارې پرمخ وړل .

نوربیا...

# جنـــرال دوستـــم؛

## بازیچـه دست وحـدت مـلی!

ابوصهیب حقانی

جنرال دوستم که تـاریخ نامناسب و بسیار وحشتناک در افغانسـتان دارد همیشـه بـه صـورت مصرفـی از او استفاده شده است مخصوصا پـس از روی کـار آمـدن حکومت نام نهاد وحدت ملی (که جنرال دوستم مـن حیث معاون اول حکومت) با شریک شدن داکتر عبدالله به حیث قدرت دوم وحدت ملی، تمام صلاحیت و اختیارات معاونیت اول او تحـت الشـعاع قـرار گرفـت و بـه حیث یـک نماد کـاملا فرسایشـی در بدنـه ای فرسوده وحدت ملی درآمد.

از بی سوادی، کم عقلی، جهـل و نـادانی، عـدم درک و دانش سیاسی و یا از سادگی و ساده دلی جنرال دوستم، اعضـای وحـدت ملـی سـوء اسـتفاده کـرده و او را بسـیار زیرکانه از تمام مسائل ریـز و درشت ارگ و مسائل پایتخت دور نگاه داشتند؛ اشرف غنـی کـه روزی خـود جنـرال دوسـتم را یـک دیکتـاتور محلـی مـی خوانـد فقـط در موقع انتخابات به رای قوم ازبیک با استفاده از جنرال دوستم ضرورت داشت که تا حدودی در وقت انتخابات به این هدفش رسید و پس از آنکـه در ارگ بـر تخـت تکیـه زد؛ و بـاز وقتـی شریـک نـو و دور از انتظـار (داکـتر عبدالله)، توسط امریکایی ها در بغل وی تراشیده شد دیگر ضرورتی بـه جنرال دوسـتم ندیـد؛ و حتـی بـا همدسـتی داکـتر عبـدالله و مشـاورین خارجی و داخلی اش سعی در دور زدن و دورنگاه داشتن جنرال دوسـتم از مسائل مملکت داری و سیاست های ارگ کرده و او را با چند کلمـه ای دروغین فریب داده یونیفرم نظامی بـه تـن او کـرده و وی را بـه میـدان های جنگ گسیل داشت چیزی که در اوائل دوستم با علاقه مندی قبول کرد؛ اما رفته رفته وقتی از سیاست های مکرآمیز ارگ نشینان آگاه شـد (و از آنجا که سواد سیاسی و توان فکری اداری و استفاده از چوکی نـام نهاد که به نامش کرده بودند را نداشت یـا اصلا بـی صلاحیت بـود کـه خودش نیز در یک اظهار نظر صریح به این موضوع اعـتراف کـرد) کـار از کار گذشته بود؛ گاهی تعصب کرده چندین ماه به ترکیه پناه برد؛ گاهی چند صباحی در کابل دست به شکایت بازی از طریـق رسـانه هـا زد و ... امـا هـیچ کـدام بـه حـالش فایـده نکـرد؛ و اشرف از وی هـمان کـاری را کشیده و می کشد که به سود او و تـیم هـم فکـرش باشـد نـه بـه نفـع جنرال و دار و دسته اش!؟

اما این جنرال بی سواد و در عین حال نادان بازهم ندانسـته؛ چـون هرگاه فشاری از سوی طالبان بر سر نیروهای شکست خورده حکومت در مناطق شمالی کشور پیدا می شود؛ هوشیارهای ظاهرا زیرک وحدت ملی،

فوری او را یونیفرم نظامی پوشیده و با شاباس و آفرین، چکچک و هوراء، به میدان جنگ می فرستند؛ اما سوال اینجاست که از رفتن جنرال به میدان جنگ چه سود؟

آن هم میدان جنگی که بارها جنرال دوستم در آن شکست خورده و ذلیل و ناکام برگشته و جز چند عکس فیسبوکی و نمایش در صفحات اجتماعی دیگر کدام دست آورد نداشته است؛ با آنکه بارها لاف تصفیه مناطق شمال از وجود طالبان را داده است؛ اما جز آنکه خودش و ملیشه های تحت امر خود را به کشتن و تصفیه شدن داده، و دها عراده جات نظامی را سالم از دست داده و به تعداد زیاد تجهیزات نظامی را در نبرد با طالبان از بین برده کمترین چانس پیروزی هم نصیب اش نشده است و ذلیل و خوار، تباه و برباد، شکست خورده و از هم پاشیده باز به کابل برگشته و خسارات هنگفتی را روی دست وحدت ملی

اما افسوس به حال آن مردمیکه بچه های نازنین خود را تحت فرمان شخص جاهلی مثل جنرال دوستم که از ظلم و جنایات وی کل ملت (بالاخص در صفحات شمال) در ستوه است به کشتن داده و به فرزندان خود رحم نکرده ...

گذاشته است؛ اما وحدت ملی این زیان های جنرال دوستم را نادیده گرفته و تحمل می کند؛ چون وجود او در کابل و در لباس شخص دوم مملکت را بیشتر به زیان خود می بیند؛ لذا همچنان او را با دادن القاب دروغین و خیالی مورد تمجید و ستایش قرار می دهند.

تعجب اینجاست که مگر از حماقت یک انسان، انسان های استفاده جو چندبار می توانند سوء استفاده کنند؛ که این همه استفاده توسط حلقات خاص ارگ از جنرال دوستم می شود و آیا واقعا دوستم که خودش پاک بی سواد است چهار مشاور با سواد خارجی و داخلی در اطرافش نیستند که او را از خواب حماقت بیدار کرده و بفهمانند که جز آنکه بازیچه ای دست وحدت ملی گردیده و در دام القاب و القاءات دروغین ارگ نشینان گیرمانده؛ اصلا برای سران وحدت ملی، حیات و حیثیت او مهم نبوده و دور کردن دوستم از ارگ کاملا یک دسیسه سیاسی و عمدی است؟!؟

اما افسوس به حال آن مردمیکه بچه های نازنین خود را تحت فرمان شخص جاهلی مثل جنرال دوستم که از ظلم و جنایات وی کل ملت (بالاخص در صفحات شمال) در ستوه است به کشتن داده و به فرزندان خود رحم نکرده و با اینکه از قبل، جنرال را بازنده اصلی و شکست خورده اول و آخر میدان های نبرد با طالبان می دانند باز هم در مسیر غلط او جگرگوشه های خود را تلف کرده و به حال خود و آینده شان رحم نمی کنند.

به امید شکست روز افزون پیروان باطل در تمام میادین حق و باطل.

# د برما
## دوامداره غمیزه او ویده امت!

فاتح کاروان

پرون ورځ یې د اکتوبر په ۱۸ مه د برما د بودایي حکومت لخوا د روهنگیا د مسلمانانو پرضد پراخ عملیات پیل شوي چې تر دې دمه پکې له سلو تنو زیات مسلمانان په شهادت رسیدلي او ګڼ شمېر نور ټپیان او بې کوره شوي دي، هسې خو هلته هره ورځ ظلم او وحشت روان وي مګر د پرونۍ پېښې په خبر کله کله برما د رسنیو د توجه سبب وګرځوي

ظلم د نړۍ په هر ځای کې شروع دی خو د برما مسلمانان د داسې سختو ظالمانو د ظلم سره مخ دي چې تش په لیدو یې د هر با احساسه مسلمان له سترګو بې اختیاره اوښکي ځي، د برما مسلمانان د څلور لسیزو را په دې خوا د ډېر بد حالت سره لاس او ګریوان دي، د ۲۰۰۷ میلادي کال را وروسته د برما او بیا په ځانګړي ډول د اراکان ولایت مسلمانان د بودایي لېوانو د داسې زړه بوږنوونکو مظالمو سره مخ شول چې د بشریت په تاریخ کې یې ډېرې کمې بېلګې موندل کیږي، هو هلته د بمونو باران نشته هلته حالت بل ډول دی د برما بودایي رژیم د دې هېواد بودایانو ته عام و تام اجازت ورکړی چې په هر ډول او هره لاره چې کولای شي مسلمانان دی قتل عام کړي او د همدې فرمان په اساس د بودایي راهبانو په غوښتنه برما کې د مسلمانانو عام وژنه دوام لري، ټولې نړۍ ولیدل چې څه ډول بودایي درنده ګانو د برما د مسلمانانو کورونه وران کړل، پر تور سرو یې جنسي تیري وکړل، ځوانان یې په عامو ځایونو کې په چړو، برچو، تورو، لرګیو، بېلچو او تبرونو ټوټې ټوټې کړل، د دې مظلومو مسلمانانو ماشومانو یې را و نیول او بیا یې د اوسپنې څادرونه ورته په اور تاوده او دا معصوم ګلان یې پرې وریت کړل خو، نړیوالو څه وکړل؟

هېڅ او یواځې هېڅ، دا اوس یو معمول جوړ شوې چې په امریکا کې څو لوطیان د لواطت په حالت مرداریږي ټوله نړۍ پرې غبرګون ښایي، دوه اسرائیلي یهودیان په تل ابیب کې وژل کېږي د نړۍ کفار پرې د ډېرې غصې د لاسه له خولو زړونه غورځوي، لس کافران پدې جرم وژل کېږي چې د اسلام د پیغمبر صلی الله علیه وسلم په شان کې یې ګستاخي کړې وه د نړۍ له یو سر نه تر بل سر پورې د جهاد او مجاهدینو پرضد د کفارو او منافقانو جلوسونه راوځي او په انتقام اخیستو عملي اقدام کوي!



په همدې فرانسه کې څو شیطان پرستان د شرابو په نشه کې مست د زنا او همجنس بازئ پر مهال وژل کېږي د نړۍ له کفارو ډېر پرې تش په نامه اسلامي ریاستونه، مدني ټولنې او د بشر- د حقوقو سازمان د خفګان څرګندونه کوي آن تر دې چې د کابل د دوه سري رژیم مشر- اشرف غني فرانسویانو ته خپله غمرازي ښکاره کوي او پورته کړنه د بشریت سره دښمني نوموي خو...!!

دا هره ورځ چې په سلګونو مسلمانان په شهادت رسول کېږي، دا یو نیم میلیاردیز اسلامي امت ته چې توهین او سپکاوي کیږي نړۍ ولې پرې ګونګه خوله ده؟!!

په تل ابیب کې یو یهودي ټپي کېږي نو له قهره نړۍ په لړزه راځي خو په برما، عراق، سوریه، پاکستان، افغانستان، صومالیا، فلپین، نایجیریا، کشمیر، فلسطین او...

هره ورځ د مسلمانانو د وینو ویالې روانې دي نړۍ او نړیوال یې یواځې تماشه کوي آیا انسانیت د نړۍ په خلکو کې ختم شوی؟

آیا مسلمانان د ژوند حق نلري؟ آیا د رحم او عاطفې په نوم اوس څه عمل شتون نلري؟؟

دا څه معنی لري چې امریکایان د برما بودایان حمایه کوي، د اسرائیلو یهودیان پر شا ټپوي او دلته په افغانستان کې د بشر- د حقوقو ډنډورې غږوي او بیا هم امت مسلمه پرې ګونګه روژه نیولې؟!!

ګیله له کفارو نه، له خپلو مسلمانانو کیږي چې دوی پخپلو کې سره اړم دي هلته په برما کې ژوندي مسلمانان په اور کباب شول، په حلب کې د اور او وینو پرته بل څه نشته، په عراق کې د امت مسلمه تاریخ او وجود و ننګول شو او لا هم زموږ مسلمانان په تنظیمي، مذهبي، سمتي او قومي اختلافاتو کې سره یو بل ته ګوته په ماشه دي!!

سعودي عرب خپل زور په عراق او یمن ازمایي، پاکستان خپل اټوم د وزیرستان په مظلومو پښتنو استعمالوي، اسلامي کانفرانس یواځې نمایشي- ناستې کوي، قطر او متحده امارات ناټو او امریکا ته د جنګ د مصارفو په ورکولو بوخت دي، د کویټ شیخان د دریو او څلورو ودونو څخه اوزګار نه شول، سوډان پخپل ناسور اخته دی، ایران خو هسې هم دوهم اسرائیل دی اخر د دې امت برخلیک به څنګه کیږي؟؟

امریکا مخکې او د اسلامي نړۍ فاسد، شرابي او پست ترین مشران ورپسې دي، ملګري ملتونه در ګرده کفارو ته د مسلمانانو د قتل عام اجازت نامې ورکوي او عرب لیګ، اسلامي کانفرانس او د اسلامي هېوادونو مشران پرې د رضایت امضاګانې کوي نو څنګه به امت نه بې سر نوشته کیږي؟؟

د برما غمیزه د اسلامي امت پرمخ هغه کلکه څپېړه ده چې بودایانو وار کړې ده خو تر اوسه یې لا چا ځواب ندې ویلې!

اې اسلامي امته! راځئ چې سره متحد شو او یو ځل بیا نړۍ ته خپل تاریخ، هویت او میرانه په اثبات ورسوو او که همداسې د ځانځانۍ او نفاق په ګرداب کې ډوب پاتې شولو نو تر دې به د سختو او بدو عواقبو سره مخ شو، هغه وخت به بل څوک نه بلکې خپل ځان او خپل اعمال زموږ د ذلت سبب وي.

د نړیوال کفر د بشپړ شکست او د اسلامي نظام د قیام په هیله

# روز نحس با عشوه گری زیبا!

محمد نذیر تنویر

## بمناسبت پانزدهمین سالروز تجاوز امریکا بر میهن ما 7 اکتوبر 2001

آغاز شب ۱۵ میزان ۱۳۸۰، آغاز یکبار دیگری سیاهی در تاریخ کشورما!

کشوری که تاهنوز زخم های «تجاوزگر شوروی» از وی التهام نیافته بود، و مردم اش؛ در بی کسی و انزوای جهانی، تازه نفس راحت «غیر وابستگی» را می کشیدند که توطئه جدید بر ایشان رقم خورد!

### روز نحس با عشوه گری زیبا!

بلی! روز نحس با عشوه نمایی های زیبا، دوباره دروازه های وابستگی را به روی مردم مظلوم این خطه گشود.

بازهم!

یقیناً بازهم، روشنفکرنماها، پلی از برای ورود متجاوزین، به مهین آزاده ی ما گشتند.

به غربت اش، به بی کسی اش، به قحطی اش، به تعزیرات اقتصادی اش، به ساده زیستن دولتمردان اش، به شکم های نیمه پُر و به پاهای برهنه مجاهدان این خطه دل نسوزاندند، و در رکاب تجاوزگر امریکا، داخل این خطه ای آزاده گشتند.

### ای وای برشما!

دیگر معلوم نبود که به چه مقیاس؛ روز و شب بر سر این ملت مظلوم بمب می ریختند، و طیاره های ناپیدا؛ با مدرن ترین سیستم های جنگی عصر، بر هر جنبده ای بی رحمانه حمله ور می گشتند؛ در حالی که روشنفکر نماها و «ملیشه های» کمین زده از برای قدرت، ناظر، تماشاگر و مشوق آن بودند.

بلی! تاریک فکران روشنفکرنما، «ائتلاف بدون سرحد» را با انواع جنایتکاران و خنثی مشربان شکل دادند. هسته و محور اصلی این ائتلاف که همان قاتلین چپی (روسی و چینی) بودند، در آنطرف مرز های شمالی و غربی، به متجاوزین چراغ سبز نشان می دادند.

متجاوزین در عالمی از کبر و غرور، بر عملی ساختن اهداف شان به شدت مصروف بودند. ترس و واهمه چنان بر این کره خاکی مستولی شده بود، که کسی حتی جرأت بیطرف ماندن را نمی توانست اختیار کند.

بوش «پسر»، با تکبر و غرور فریاد سر می داد که: «یا با ما، ویا برضد ما«!



دیگر «عقل ها» منجمد و انجنیران جهان مُهر سکوت بر دهان زده بودند، تا فریاد سر دهند که ۱۱ سپتامبر یک درامه بیش نیست! بخصوص که امریکا خود، تجربه عملی از برخورد (بی ۲۵) بر آسمان خراش «امپایر ستیت» نیویارک را در سال های 1945 داشت، که به جز همان طبقه، تعمیر به خاک یکسان نشده بود، آنهم بطور عمودی!

### اما چرا افغانستان!؟

شب و روز بر سرزمین ما بمب می ریختند، و ائتلاف «قاتلین بدون سرحد»، جشن و پای کوبی «برگشت دوباره» شان را در تاجکستان، ازبکستان و ایران براه انداخته بودند.

میدان های ملکی کشورما، به خاک یکسان گشتند و تمامی طیارات ملکی نابود شدند. زنان و اطفالی که از زیر آوار ویرانه ها بیرون آورده می شدند، نشر تصویر شان جرم پنداشته می شد. زمانی که «تیسیر علونی» خبرنگار شجاع الجزیره همچو گزارشی را به بیرون انتقال داد، چند لحظه ای نگذشته بود که دفتر مرکزی الجزیره در کابل با



ژورنالیست هایش به خاک و خون کشانده شد.

دیگر نه از حقوق بشری خبر بود، و نه از آزادی بیان و مطبوعات!

آنها فراموش کرده بودند که عاقبت امور در دست خالق هستی ست (وَإِلَى اللَّـهِ عَاقِبَةُ الْأُمُورِ)؛ و اینکه برای انسان ها مهلت داده می شود، از برای «من و تو» ست تا جایگاه خود را نزد الله (ج) تثبیت بداریم!

۷۲روز وحشت به فجیع ترین شکل اش ادامه داشت. اما امریکای تجاوزگر با مؤتلفین اش، نتوانستند که «یک انچ» در سرزمین آزادگان افغان، نفوذ کنند!

بلی! اینجاست که خائنین ملی؛ از شاه سابق تا رهبران مجاهدنما، از قاتلین خلق و پرچم تا ملیشه های دوستم، از مائویستهای «راوا» تا تکنوکرات ها، از سیکولر های بی دین تا رافضی های اسلام نما، از ناسیونالیست های زبانگرا تا نژاد پرستان کینه توز، ووو.... خلاصه تمامی این نیرو های «شر و فساد» که اقلیت کشور را تشکیل می دادند، زیر چتر ائتلاف شمال (ستون دومی متجاوزین) به تحرک آمدند.

دیگر غرور امریکا در حال شکستن بود، و قدرت نظامی اش زیر سوال می رفت که این ائتلاف نحس (ائتلاف شمال)، دوباره آنرا اعاده ساخت. آنها در حالی که «کروکی» محل را برای اشغالگران مخابره می نمودند، با اثابت بمب های دوهزار کیلویی بر محل،خوشی و سرور سر می دادند و در برابر کمره های خبرنگاران (ستون سومی متجاوزین)، فخر فروشی براه می انداختند. یقیناً که وطن فروشان جدید، به وطنفروشی شان فخر می ورزیدند، و «غیر وابستگی» را از اعوامل عقب ماندگی می دانند!

بلی! همین ائتلاف نحس است که امروز برای ما درس وطندوستی و مجاهدت را می دهد!

آخر «بی شرمی» و «بی حیایی» از خود حدود و سرحدی دارد:

ϖآنها (متجاوزین) می کشند و روزهای نحسی را در تاریخ کشورما رقم می زنند،

اینها (ائتلاف نحس) با عشوه نمایی های شان، آن را برای ما زیبا جلوه می دهند؛

ϖآنها، دزدان و آدمکشان شان را برای ما قهرمانان معرفی می دارند،

اینها ایشان را برای ما تاریخ سازان و الگو های جهان جلوه می دهند؛

ϖآنها قاتلان و متجاوزگران خودشان را قهرمان، و قهرمانان و آزادی خواهان ما را قاتل معرفی می دارند،

اینها در پخش و نشر اش، بی شرمانه مباهات ورزیده، حتی به گذشتگان این خطه نیز می تازند(سلطان محمود، احمدشاه بابا ووو...)؛

ϖآنها قاتلان و دزدان کشور خودی ما را قهرمان می سازند،

و اینها آنرا با رأی های جعلی، سردار و حاکم ما می گردانند؛

ϖآنها گرگان و جانیان را، مدیران امن و رفاه مردم ما می گردانند،

و اینها به آن لبیک گفته و ایشان را فرزندان رشید این خاک دانسته، جاده ها و جای های عامه را به اسم ایشان نامگذاری می نمایند؛

ϖآنها مجاهدان و آزادی خواهان ما را تروریست و متحجر می نامند، و تروریستها را آزادی طلب،

و اینها با ایشان همصدا شده و طلب محکمه آنها را نیز می نمایند ووو...

**و بیاید، ازین گل نو پیوند کنید!**

این همه قتل و جنایت متجاوزین در طول ۱۵ سال؛ با یک وعده منافقانه «اوباما» سفید گشت، و با اعلان خروج نیروهایش، چنان به وی اعتماد کردیم که جهاد و مبارزه یگانه نیروی مقاومت کشور خود را (امارت اسلامی)، به «برادر کشی» شکل دادیم!

**پس هنوزهم آزمایش ادامه دارد:**

وَلَنَبْلُوَنَّكُمْ حَتَّىٰ نَعْلَمَ الْمُجَاهِدِينَ مِنكُمْ وَالصَّابِرِينَ وَنَبْلُوَ أَخْبَارَكُمْ ﴿۳۱﴾

ما همه ی شما را (با وجود آگاهی از اعمالتان) قطعاً آزمایش می‌کنیم، تا معلوم شود مجاهدان (واقعی) و صابران شما کی ها هستند (و مجاهدنماها و ناشکیبایان سست‌عنصر- کی ها هستند). و گزارش‌های شما را رسیدگی و برملا کنیم.

و نباید در دقایق اخیر، جهاد خویش را از دست دهیم:

وَلَا تَهِنُوا وَلَا تَحْزَنُوا وَأَنتُمُ الْأَعْلَوْنَ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ ﴿۱۳۹﴾

و (در انجام فرمان هایِ حق و در جهاد با دشمن) سستی نکنید و (از پیش آمدها و حوادث و سختی هایی که به شما می رسد) اندوهگین مشوید که شما اگر مؤمن باشید، برترید.

و نباید فراموش کنیم که این همه مصیبت و آفتی که بر سر کشور و مردم ما آمده و تاهنوزهم ادامه دارد، دستآورد روز هفتم اکتوبر ۲۰۰۱ می باشد!

روز نحس با دستآورد ۴۰۰ هزار کشته و معلول، چهار میلیون معتاد و میلیون ها فاحشه و فاسد؛ با عشوه نمایی دمکراسی و حقوق انسانی!

یقیناً! روز نحس با عشوه گری زیبا!

# افغانستان

# او مثلي جنسپال

لطف الله خيرخوا

سړی دوو کې حيران شي، چې ويې وايي که نه؟ که يې وايي د خلکو ورپام کيږي او که يې نه وايي، مهمه خبره بې ځوابه پاتې کيږي، خو که يې نه وايي هم سړی يې له غمه وايي. درې ورځې پرله‌پسې بي بي سي پښتو راديو او تلوېزيون د مثلي جنسپالو په اړه راپور او مرکې خپرې کړې. په راپور او مرکو کې د مثليانو غږونه نه شته، د بي بي سي د خبريالانو غږونه دي، خو وايي چې دا پلانی مثلي دی. که فکر وکړو، چې افغانستان کې د دوی غږ ته انعکاس ورکول څه معنی لري؟ رښتيا هم افغانستان کې داسې څوک شته؟

راپور ښيي، چې افغانستان کې په تمامه معنی مثليان نه شته، بد فعلي به وي، خو داسې چې خپل ژوند دې د مثليانو په څېر تېر کړي، داسې څوک نه برېښي او ښځو کې بيخي نه برېښي.

يوه خبره امکان لري چې غرب کې زېږېدلي افغانان يې راوستي وي او په دې ډول يې ښکاره کړي، لکه نرښځی نعمت سادات، چې د مفکر د کانديداتورۍ وخت کې يې د افغان مثلي جنسپالو په استازيتوب د ده ملاتړ اعلان کړی و. د دوی خپل راپور وايي، چې افغانستان کې د دوی ځای نه شته، خو د خپلو حقونو لپاره به هلې ځلې کوي. په راپور کې، چې د مثليانو وينا ويل کيږي، يو مفعول نرښځی د خپل احساس په اړه ډېرې پرېوتې خبرې کوي، دا نرښځی نعمت سادات دی. ما ته له دې معلوم شو، چې راپور کې يې ژورناليست په اړه وايي، چې د افغانانو ساده سينګار مې نه خوښيږي، زما تېز رنګونه خوښيږي. تاسې نعمت ګوګل کې ولټوئ، چې پر شونډو او مخ يې څومره تېز رنګونه کارولي. بله دا چې همدغه مفعول نرښځی په پټ مخي راپور کې وايي، چې دا يو واقعيت دی او زموږ انتخاب نه دی او نعمت دا خبره «د فکر لارې» پروګرام کې مستقيما کوي. داسې برېښي، چې بي بي سي په لوی لاس غواړي، دې موضوع ته د خلکو پام ورواړوي او افغانستان کې نرښځيتوب مثليت ته رشد ورکړي.

په راپور کې او د نرښځي سادات په خبرو کې څو خبرې ډېرې ګواښمنې وې. يوه خبره دا ده، چې دی وايي «مثليت» يو واقعيت دی، زموږ انتخاب نه دی. موږ الله(جل جلاله) داسې پيدا کړي يو، نو ولې په شريعت کې زموږ سزا مرګ دی؟

دوی فکر نه دی کړی، چې غلا هم يو واقعيت دی، قتل هم يو واقعيت دی، نشې او مخدرات هم يو واقعيت دی، ځانوژنه هو يو واقعيت دی، په غرب او اروپا کې د انسانانو خرڅول هم يو واقعيت دی. اوس به څه کيږي؟ هر څه چې يو واقعيت دی، اجازه لري؟ که غل، قاتل، نشه‌يي راپاڅيږي، چې دا زموږ انتخاب نه دی، دا يو

واقعیت دی، مونږ الله(جل جلاله) دغسې پیدا کړي یو، مونږ ته باید د غلا، قتل او نشې اجازه راکړی شي، منئ یې ورسره؟

که ځانوژنه د ډیپریشن یا نفسیاتي مرض له امله کیږي، نشه مرض وي، څنګه هغه انسان روغ دی، چې د انساني فطرت خلاف طبیعت لري؟ نر په طبیعت کې ښځې ته میلان لري، همدا ډول ښځه په طبیعت کې سړي ته، اوس که سړي او ښځه کې نوموړی طبیعت نه وي او دواړه د فطرت خلاف خپل مثل ته میلان لري، څنګه مرض نه دی؟

زه دې موضوع پسې ولټېدم، چې ډاکتران په کې څه وایي. په ریاض کې د ډاکتر عبدالله السبیعي په نوم یو نفسیاتي ډاکتر وایي، چې نړدې ټول سایکاترستان پر دې یوه خوله دي، چې مثلیت مرض دی. د دوی په اصطلاح د هرمونونو د ایجابیت او سلبیت مخالطې نه دا مرض پیدا کیږي. دی وایي، دې مخالطې ته دوی د طبیعت نوم ورکړی، چې په سلو کې یو فیصد هم نه تشکیلوي!!

قرآن کریم کې د لوط علیه السلام د قوم کیسه مونږ ته د دې خلکو نفسیات ډېر ښه روښانوي.

دوی، چې د خپل طبیعت خبره کوي، دا لومړی ځل نه دی، بلکې له دوی ډېر مخکې د لوط علیه السلام قوم دا خبره کړې. په راپور کې نرښځی سادات وایي، چې مونږ خدای(جل جلاله) داسې پیدا کړي یو، مخالف جنس ته مو هیڅ میلان نه شته!!

کله چې د عذاب ملایکې د لوط علیه السلام کور ته راغلې، ډېر وغمېده، چې قوم به مې مېلمنو ته وشرموي. قوم یې خبر شو، چې لوط علیه السلام کره ښکلي هلکان راغلي، قرآن کریم د دوی د عکس العمل عجیب تصویر کاږي. وایي : **{وَجَاءَهُ قَوْمُهُ يُهْرَعُونَ إِلَيْهِ}**. قوم یې ورته راغی، ګبړی نیولی راروان و. دا خلک ګبړي نیولي ول، نورمال نه ول، منډې یې راوهلې. لوط علیه السلام ورته وویل. ګورئ! مېلمنو ته مې مه شرموئ. دا زما لورګانې دي، نکاح یې کړئ، دا پاکیزه کار دی، هغوی ورته وایي : **{قَالُوا لَقَدْ عَلِمْتَ مَا لَنَا فِي بَنَاتِكَ مِنْ حَقٍّ وَإِنَّكَ لَتَعْلَمُ مَا نُرِيدُ}** ته ښه پوه یې، چې مونږ ستا لورګانو ته هیڅ رغبت نه لرو او ته ډېر ښه پوهېږې، چې مونږ څه غواړو.

دا عینا همغه خبره ده، چې اوسني مثلیان یې کوي. قرآن کریم د دوی دې میلان ته «فاحشة» هم ویلې، «سیئة» یې هم ورته ویلې او د دې فحشاء په ارتکاب یې جاهلان او مریضان ګڼلې. **{وَلُوطًا إِذْ قَالَ لِقَوْمِهِ إِنَّكُمْ لَتَأْتُونَ الْفَاحِشَةَ مَا سَبَقَكُمْ بِهَا مِنْ أَحَدٍ مِنَ الْعَالَمِينَ}**. او لوط علیه السلام چې خپل قوم ته وویل تاسې بدکاري کوئ، چې هیچا نه ده کړې. علماء وایي، چې په { مَا سَبَقَكُمْ بِهَا مِنْ أَحَدٍ مِنَ الْعَالَمِينَ } کې دې ته اشاره ده، چې دا کار د طبیعت خلاف دی، د انساني فطرت خلاف دی، هیڅ مخلوق یې نه کوي. په {مِنْ أَحَدٍ مِنَ الْعَالَمِينَ} کې دې ته اشاره ده، چې یوازې انسانان نه، بلکې د نړۍ پر مخ هیڅ ژوی یې نه کوي.

**بل ځای کې هم دې ته ورته اشارې شته، چې دا کار د فطرت خلاف دی، وایي : {إِنَّكُمْ لَتَأْتُونَ الرِّجَالَ شَهْوَةً مِنْ دُونِ النِّسَاءِ بَلْ أَنْتُمْ قَوْمٌ مُسْرِفُونَ}. تاسې سړیو ته د شهوت له کبله ورنږدې کېږئ، ښځو ته نه، تاسو له حده جاروتي خلک یاست. بل ځای ورته وایي : {بَلْ أَنْتُمْ قَوْمٌ تَجْهَلُونَ}. تاسو جاهل خلک یاست.**

علماء وایي، رجال کې دې ته اشاره ده، چې تاسې داسې چا پسې نښتي یاست، چې سبا بله ورځ د کټو هم نه وي، شهوت خو لا پر ځای پرېږده. دوهمه دا ده، چې ستاسې دا کار یوازې شهوت پالنه ده، که نه نو نکاح خپل اهداف لري، مقاصد لري، چې په دې مثلیت نه تر لاسه کیږي؛ یوازې شهوت نه دی.

اوس د ایتونو تناظر کې د دوی د مثلیت اهداف وګورئ. که سړی یې وپوښتي، چې ښځې سره نکاح د نړۍ د ابادۍ سبب دی، ځکه چې په دې تواصل او پای تناسل باندې نسلونه جوړیږي. تاسو څه هدف لرئ؟ ښځې سره نکاح باندې د انسانانو تر مینځ عواطف زیږي. ښځه او میړه. پلار او زاړه، مور او زاړه. ماما او خوریونه. کاکا او وریرونه. عمې او وریرونه، ترورګانې او خوریونه. د تره زامن، د ترور زامن. تاسو ترې څه جوړوئ؟

ښځې سره نکاح باندې د انسانانو د تربیې دود پایي. د کور ساتنه، د کور اداره، د اولادونو تربیه او تعلیم، چې د نړۍ ابادي ده، تاسو څه کوئ؟

اصلا دا د نړۍوال کفر د شامل یرغل فکري کړۍ ده، چې پر مخ یې بیایي. دا چې بي بي سي هم دا تبلیغات «د فکر لارې» پروګرام کې پر مخ بوځي، صراحتا د فکري یرغل یو صورت دی، چې زموږ د مسلمان ولس پر ضد پلی دی.

# د کابل ضعیفه اداره

خالد منهاج

د کابل د حکومت ضعف اوج ته رسېدلی دی ، چورلټو دروغو او بې بنسټه افواهاتو ته یې مخه کړې ده ، مرال بایللي عسکر یې هره ورځ سلګونه کسان له ټانګونو او موهماتو سره طالبانو ته تسلیمیږي ، د غني او او عبدالله تر منځ د واک اختلافات د پخوا دوه برابره شوي دي ، دوستم هم د عبدالله هغه ادعا چې دوستم زخمي شوی دی بې بنسټه او دروغ ګڼلې وه او سره مځغې په مځغې دي ، عطا محمد نور په عربستان کې د دې پر ځای چې قدر یې وشي د لویې ډلې عربانو او عبدالله په مخکې ښه بې عزته شو.

نو همدا وجه ده چې کله وایې د طالبانو مشر روسیې ته سفر کړی ، کله وایې ۷۰۰۰ دواعش راځي ، کله وایې جګړه پاکستانیان پر مخ وړي.

وروستی او خندونکې یې دا وه چې د افغانستان د دې اوږدې پېچلي مسلې د حل تړاو یې تر ګاردین ورځپاڼې پورې ورکړ او اوازه یې خپره کړه چې ګواکې طالب مشرانو د ګوډاګي ستانګزي سره په دوحه کې لیده کاته او د سولې اړوند مذاکرات کړي دي.

په داسې حال کې چې د ګوډاګی اداري ټول چارواکي د غني په ګډون د دې مذاکراتو څخه چوپ او بې خبره دي.

آن تر دې چې هغه د سولې د شوراګانو او کمېسونونو غړي هم حیران دي چې مذاکرات چا او چیر ته کړې.

طالبان خو دې مسلې زیات التفات ځکه نه کوي چې د هغوی دریځ په دې برخه کې واضح دی او په څو ځله یې داسې بې بنسټه انګازې د دښمن تبلیغات ګڼلي.

حقیقت دا دی چې ګوډاګی حکومت په دې وروستیو کې ډېر ضعیفه شوی او د سختې ماتې او رسوایۍ سره مخ دی ؛ غواړي چې په داسې کړنو سره خپل ضعف او ماته پټه کړي او د افغان ولس پام بلې خواته واړوي.



# ګلمجمي ښځينه مليشې

عصمت الله عزام

تېره ورځ په رسنيو کې داسي خبرونه خپاره سول چې د افغانستان په شمال جوزجان او فارياب ولايتونو کې د جنبش ګلمجمو مليشو لخوا د طالبانو په خلاف په ازبکو ښځو باندي وسلې وويښل سوي تر څو د طالبانو مقابله پري وکړي، هيره دې نه وي چې څو ورځې مخکې د ګلمجمو مشر۔ دوستم فارياب ولايت ته ولاړ او د خپلو ګلمجمو مليشو سره د غورماچ ولسوالۍ د نيول لپاره په لاره کې د طالبانو په کمين واوښتل، چې دوستم يې سره د ګلمجمو کلک محاصره کړ، چې په ترڅ کې يې دوستمي مليشو ته درانه تلفات واوښتل او د دوستم پنځه خاص کسان مړه او خپله دوستم تېښې سو او محاصره يې د اشغالګرو د چورلکو په مټ ماته کړه، او همداشان دا يې دريم ځل دی چې دوستم په فارياب کې د طالبانو سره په جګړه کې ماتې خوري. نو دا چې دوستم ماته وخوړله، اوس يې يوه بله بې شرمه تبلغاتي حربه وکاروله چې په ښځو يې وسلې وويشلې، نو ددې خبر په اوريدلو سره ما ته د نبی کريمﷺ د وخت د غزا يوه واقعه رایاده سوه.

حضرت خالد بن وليد رضی الله عنه د روميانو مقابلې ته ولاړ روميانو غوښتل چې د مسلمانانو سره جنګ ونکړي، نو روميانو اول مسلمانانو ته د خپل طاقت خبري شروع کړي چې موږ د هغو نورو مشرکينو په رقم کمزوري نه يو موږ ډېر غښتلې يو، خو حضرت خالد رضی الله عنه ورته وويل ( يا کلب الروم ) ای د روم سپيه ته موږ ته قاصد راغلی يې که موږ ته نصيحت کوي، نو بيا روميانو ددې نه وروسته مسلمانانو ته د جنګ پرينبودلو لپاره د پيسو وړانديز وکړ خو د خالد رضی الله عنه لخوا رد کړل سو نو په اخيره کې روميانو د مسلمانانو د جنګ پرينښودلو لپاره د ښځو حربه په کار واچوله چې ښايسته او فاحشې ښځې يې مسلمانانو ته راوليږلې تر څو مسلمانان پري مشغوله کړي او جنګ پريږدې، خو تر هغو صحابۀ قربان سم چې په خطا کې يې هم کله ورته ونه کتل او قصداً خو سوال نه پيداکيږي چې ورته وګوري، نو همدارنګه صحابه کرام له فتنې څخه خلاص او پخپل ځای ثابت قدمه پاتې سول، نو اوس هم طالبان د صحابۀ په لار روان دي لکه څنګه چې صحابه په امتحان کې کامياب او کفار ناموراله سول همداشان د ګلمجمو مليشې به هم په دې بې شرمې حربې کې ناموراله او ناکامه شي او طالبان به د الله ﷻ په نصرت سره فاتحان او بريالي وي.

# ابـــدي تسليـــمي

\# زاهد جلالي

اسلامي نړۍ له نږدې دوه سوو کلونو راپه دې خوا د بقا پـه جګړه بوخـت ده. کـه دغـه ډول جګـړې د نـورو تمدنونو پر وړاندې ترسره شي، ستونزمنه ده چې دومـره دې دوام وکړای شي. په دغه خطرناکه او څو جبهـه ییـزه جګړه کې مسلمانانو ډېر څه له لاسه ورکړل. د مسـلمانانو نظام په کې له منځه لاړ، چې په نتیجـه کـې یـې اسلامي نړۍلید یې له سوال سره مخ کړ، او د دې په نتیجـه کـې بیا اسلامي هویت د له منځه تلو لـه ګـواښ سره مـخ شـو، خو مسلمانان لا هم تسلیم نه دي.

په اسلامي نړۍ کې د استعمار لـه دورې وروسـته د تهدیدونو پر وړانـدې طبیعـي ځوابونـه راپورتـه شـول. پـه مصر کې رفاعه طهطاوي، په هند کې سید احمد خان، پـه مصر او نوره اسلامي نړۍ کې محمد عبده لـه ریفـارمرانو څخه وو. دوی غوښتل د اسلامي نړۍ دودپال رویـه بدلـه کړي او له نوې نړۍ سره یې د تعامـل جوګـه کـړي. هغـه مهال دودپالنه یا ټرډېشنلېزم د ځپل کېدو په حال کې و؛ ځکه مسلمانانو، یا لږ تـر لـږه مسلمانو مصلحینو ګومـان کاوه چې د اسلامي تصور لـه بـدلولو او عصرـ سره یـې لـه عیار کولو پرته بله چاره نه شته.

استعماري بادارانو (Colonial Masters) د دودپالو او اصولي نویتوب پالو په پرتله د سید احمد خان پـه څېـر مصلحین خوښول؛ ځکه دوی مسلمانان وو او په ټولنه کې اغېزمن خلک وو–که به نـه وو، استعمار بـه یـې اغېـزمن کولو کې مرسته کوله- او دوی د مسـلمانانو زړونـو کـې د استعمار پر ضد د مقابلې پر ځای لـه دوی د زده کـړې او شاګردۍ لاره غوره کوله. سید احمد پـه هنـد کـې الیګـړ کالج جوړ کړ او په لومړي وار یې مسلمانانو تـه پـه غـربي طرز زده کړې شروع کړې. محمد البهي وایي چې په هند کې د استعمار د شتون د توجېه په تړاو د سر سید د هڅو په پایله کې د قادیانیت او احمدیت په نامه نـوي دینونـه رامنځ ته شول.

استعماري بادارانو ځکه د مصلحینو ملاتړ کاوه چې هغوی پوهېدل چې اصلاحي حرکتونه به مخکې ځـي او د هغې پروژې مورثین به جوړېږي چې دوی د استشراق پـه نامه کلونه وړاندې شروع کړې وه. محمود شـاکر، چـې د غـرب او اسلام د اړیکـو جـدي څېړونکـی دی، پـه خپـل کتاب «الطریق الی ثقافتنا» کې لیکـي چـې استعمار پـه درې جبهو کې د اسلامي نـړۍ پـر ضـد جګـړه پیـل کـړه: صـلیبي جګـړې، تبشـیر یـا تنصیر او استشراق. صـلیبي جګړو د مسلمانانو ډېره ځمکه ونیوله کړه او تبشـیر، یـا د مسلمانانو مسیحي کولو هم پـه ځینـو ځـایونو کـې مثبتـه پایله لرله. خو استشراق، یعنې ختیځ پوهنـه، ډېـر مهـم و؛ ځکه ځمکې د تاریخ په اوږدو کې ډېرنیول شـوي او بایلـل شوي. یو مهالې د چنګېز خان لمسیان هم د نړۍ پر ستره برخه واکمن شول، مګر تر څو چې مخالف له فکري اړخـه نـه وي مـات شـوی، پـر ځمکـې واکمنـي یقینـي نـه ده. رښـتینې بریـا د فکـري غلبـې پـه صـورت کـې رامنـځ تـه کېدای شي. د اسلامي سترو واکمنیو د دوام ستر لامل د مسلمانانو فکري قوت و.

محمود شاکر وايي چې د استشراق موخه دا وه چې مسلمانان په غرب کې جاهل قوم معرفي کړي او خلک داسې وپوهوي چې دوی ساده خلک دي، له دښتو راپورته شوي او د محمد په نامه يوه سړي له يهوديت او مسيحيت څخه څه زده کړي او د دې له مخې يې د پيغمبرۍ دعوه کړې او د دوی پر وړاندې جګړه د جهالت پر وړاندې مبارزه ده. وروسته استشراقي هڅې پراخې شوې او د اسلام په اړه د مسلمانانو مشکوک کول هم د غې پروژې برخه وګرځېده. دوی د رسول الله خبرې د شک وړ وبللې او د قرآن نص يې د انسانانو له لورې جوړ شوی وباله .

لنډه دا چې استشراقي حرکت پر هغو بنيادونو برید وکړ چې اسلام پرې ولاړ و او د نړولو هڅه يې وکړه. دوی به د غربي لوستونکو ذهنيتونه د مسلمانانو په تړاو خراب کړي وي، خو په مسلمانه ټولنه کې د مستشرقينو کتابونه يوازې محدودو علمي مرکزونو کې لوستل کېږي. د عامو مسلمانانو پر وړاندې مستشرق عالم او صليبي جنګيالی ډېر توپير نه لري؛ ځکه خو په شرقي ټولنو کې د دغه حرکت اغېزه هم ډېره نه وه.

له همدې کبله استعماري بادارانو په اسلامي نړۍ کې د اصلاح په نامه موډرنېستان يا نويتوب پالان ښه استقبال کړل. د دوی کمال دا و چې د مسلمانانو بچيان وو، د دوی په څېر رنګونه يې لرل، هماغه شان جامې يې پر تن وې، په يوه ژبه سره غږېدل او د يوه درد د لرلو ادعا يې کوله؛ ځکه خو د دوی اغېزه نسبتا زوروره وه.

غربي واکمن پوهېدل چې دغه ماډرنېستان يوازې د غربي درسي طرز په اخيستلو بسنه نه کوي، بلکې د اسلامي رويې او آن د اسلامي تصور د بدلولو پلان د دوی مهم هدف دی او دغه پلان کې به هره ورځ مخکې ځي او نوی فکري طرز به وړاندې کوي او لا به پر اسلامي اصولو پښې ږدي. په مصر کې، چې دغه حرکت په کې ډېر زورور و، د طه حسين په څېر خلک رامنځ ته شول چې د يهودي مستشرق، ډېوېډ مرګليوت خبرې يې کټ مټ نقولې او د قرآن په حقانيت کې يې شکونه ښکاره کړل. د طه حسين پروژې ځکه ډېر مخالفين راپورته کړل، چې مستشرقينو ته ډېر ورته و او د هغه پر مسلمانۍ هم ډېر مشکوک وو.

دغه استشراقي پروژه هغه مهال ډېره خطرناکه شوه چې لوبغاړي يې د مخلصو مسلمانانو په شکل کې ښکاره شول. اوس په مصر کې جمال البنا (د مرحوم حسن البنا ورور)، فرج فوده، حسن حنفي، نصر۔ حامد ابو زيد، الجزاير کې محمد ارکون، په هند کې وحيد الدين خان، په ايران کې عبد الکريم سروش او نور د همدغې استشراقي پروژې پرمخ وړونکي دي .

عجيبه بيا دا ده، چې دغو ماډرنېستانو يوې سترې ډلې په شرق کې زده کړې کړي. غرب ته يا اصلا د زده کړو له پاره نه دي تللي او يا يې لږه موده په کې زده کړې کړي. دوی بيا تر ټولو ډېر د عصر د بدلېدو خبرې کوي او د وخت چلنجونو ته ګوته نيسي، په داسې حال کې چې دوی له غربي ټولنې ژور فهم نه لري او د هغوی له ستونزو نه دي خبر. بلې خوا، د حسين نصر۔ په څېر مفکرين چې ټولې زده کړې يې غرب کې کړي او د هغې ټولنې له ستونزو ژور خبر دی، په ډاګه وايي چې ماډرنېزم د مسلمانانو ستونزه نه شي حلولای. هغه خپل ځان ټرډېشنلېسټ، يا دودپال بولي او په هغې لارې تلل غواړي چې پخواني اسلامي تفکر پرې اوږد مزل کړی.

دغه لنډه مقاله کې د ماډرنېزم په نامه استشراقي پروژې د پرمخ وړونکو ټول افکار نه شي څېړل کېدای، خو يوازې د دوی ځينو افکارو ته اشاره کافي ده او د قرآن په اړه د دوی د موقف ته يو نظر اړين دی. په ډېر لنډ شکل، په اسلام کې د سياسي نظام او لارښوونو نشت، له سود سره د مخالفت کمرنګه کول، اسلامي حجاب عربي رواج



بلل، د ځوانانو او پېغلو ترمنځ ښکلول روا بلل، د ښځو او ټولنې د غربي-رنګه آزادۍ له پاره هلې ځلې... د دوی له فتواګانو او اهدافو څخه دي. عموما د دوی تر ټولو ستره هڅه دا وي چې اسلام له غربي ارزښتونو سره ټکر کې رانشي او که راځي، باید اسلام صیقل او له غربي ذهنیت سره برابر شي.

ځینې نویتوب پالان دومره افراطیان دي چې د دوی یوتوپیا –یا له اسلامه خیالي فهم- کې اسلام داسې جامه پر تن ده، چې د رسول الله له دورې راونیولې، تر اوسه پورې هېڅ مسلمانان وروسره آشنا نه و. د دوی له نظره تېرو څوارلس سوو کلونو کې د اسلامي فهم په اړه ټول لیکل شوي مطالب د اسلام سم تفسیر نه شي وړاندې کولای.

د دوی اکثریت د اسلامي تمدن پر ډېر مهم بنیاد، قرآن، برید کوي او غواړي د دې ارزښت سطحي وښيي؛ په داسې حال کې چې د مسلمانانو او اسلامي ثقافت د بقا تر ټولو ستر لامل همدا قرآن دی. په ډېر خلاصه شکل، د قرآن په اړه چې کوم نظر عبد الکریم سروش لري، د دې په پایله کې به د اصول الفقه هېڅ اړتیا نه لیدل کېږي، د قرآن تفسیرونه به د تاریخي کتابونو حیثیت غوره کړي، اسلامي قانون او د فقهې ټول ستر کتابونه به یوازې د اسلامي ادبي نصونو په څېر لوستل کېږي او خپل دیني حیثیت به له لاسه ورکړي... ځکه سروش قرآن د رسولانه رویاګانو یا خوبونو زېږنده بولي. هغه جبراییل وهم بولي او د خدای له لورې د قرآن له نزوله منکر دی. نو هغه کتاب چې د انساني رویا ټولګه وي، له نورو انساني کتابونو سره ډېر توپیر نه لري، د لاسوهنې امکان یې وارد دی او لکه څنګه چې اوس مسلمانان قرآن ته په کوم ارزښت او مکانت قایل دي، دغه مرکزي حیثیت به نور نه لري.

په دغه صورت کې به قرآن له نورو انساني کتابونو سره ډېر توپېر ونه لري. د عبدالکریم سروش له نظره قرآن او د مولانا رومي مثنوي کوم فرق نه لري. دواړه د یوې الهامي تجربې زېږندې دي او دغه ډول تجربې له نورو ډېرو انسانانو سره هم ترسره شوي او لا ترسره کېدای شي. د دې نتیجه دا ده، لکه څنګه چې مخکې مو وویل، چې د قرآني نص د پوهېدو له پاره چې د تفسیرونو، اصول الفقه او د فقهې په کتابونو کې کومه هڅه شوې، دا به خپل ارزښت له لاسه ورکړي او د دې په نتیجه کې به د اسلام تېر څوارلس سوه کلن علمي میراث بې ارزښته او ضایع شي. دا ځکه، چې قرآن په اسلامي علمي میراث کې د مرکز حیثیت لري او ټول علوم ترې مشروعیت اخلي او پر محور یې څرخېږي. کله چې قرآن خپل حیثیت له لاسه ورکړي، پاتې اسلامي علوم پخپله مري. پر دې اساس، پر قرآن برید، د اسلامي تمدن پر زړه د غشي منډل دي.

د اسلامي نړیوال-لید او تېر اسلامي ثقافت په اړه د دغو نویتوب پالو د تصور له مخې به مسلمانان به له خپل تېر تمدن سره پرې شي، خپل هویت به له لاسه ورکړي او د نورو ناکامو ملتونو په څېر به د غرب لاره څاري. په دغه حال کې مسلمانانو ته د بیا راپورته کېدو هېڅ تمه نه شي پاتې کېدای؛ بلکې دوی به لاس او پښې تړلي د غرب یا بل نړیوال واکمن مخې ته پراته وي او هغوی به یې د تقدیر ټاکلو پرېکړه کوي. زموږ استاد، پروفیسر- عمران احسن خان نیازي د دغه فکر ټول هدف په یوه ډېره مناسبه اصطلاح کې خلاصه کړی. د هغه پر وینا، د دغه معذرتخواهانه منهج څښتنان نړیوال زبرځواک ته د مسلمانانو ابدي تسلیمي «Perpetual Surrender» غواړي.

# عسکر ولې تسلیمیږي؟

شبیراحمد عثماني

هسې خو له ډېر وخت نه عسکر او پولیس د غلامې اداري سره په کار کولو خجل او خپل وجدان ته شرمنده دي، وخت په وخت یې له خپلو دندو لاس اخیستی او یا هم له خپلو وسلو سره طالبانو ته تسلیم شوي خو د تیرو دوو میاشتو نه دا بهیر دومره ګړندی شوی دی چې په تیرو دری نیمو لسیزو کې یې ساری نه دی لیدل شوی.

د امریکا متحده ایالات او جرمني هیواد چې په اصطلاح د ملي اردو او ملي پولیسو په جوړښت او روزنه یې ملیاردونه ډالر مصرف کړي هک بک پاتې دي او دیته حیران دي چې د دومره ډیرو لګښتونو سره سره هغه هدف ته نه رسیږي کوم چې د غلام حکومت د ثبات لپاره اړین دی.

امریکایي جنرالان په ځغرده وایي چې د ملي اردو او ملي پولیسو سرتیري خپلې دندې خوشې کوي، له دندو تښتي او یا هم طالبانو ته تسلیمیږي.

اصلا حقیقت داده چې د افغان په خټه کې اسلامیت او افغانیت اغښل شوی دی. که یو شمیر یې د یو محدود وخت لپاره فریب وخوري دوکه شي، خو پای یې د حقیقت ادراک دی چې خپل اصل ته رجوع کوي.

واقعي مسلمان عسکر اوپولیس په دې ښه پوهیږي چې دوی د څه لپاره رزمیږي او پوهیږي چې رزمیدنه یې د چا د اهدافو لپاره ده په دې هم پوهیږي چې له چا سره جنګیږي. دا چې امریکایان د اقیانوسونو له خوانه دې خوا راځي او د افغانستان په پوځي ارګانونو خپل مالیات مصرفوي ته وا د مسلمانانو د ثبات سره مینه او علاقمندي لري؟

او یا افغانان دومره ورته ګران دي چې د دوی لپاره ملیاردونه ډالر اوبه کوي؟ نه نه دا هیڅ امکان نه لري . بلکې د دې لپاره دا هرڅه کوي چې دلته یو داسې نظام جوړ او وساتي چې د دوی ګټې خوندي کړي او د مسلمانانو په لاس مسلمانان ووژني، د خپلې خوښې نظام قایم کړي چې شریر،مفسد او خائنان خو د دوی د ګټو ساتونکي کسان په واک کې وساتي او مونږ دا هرڅه په غړیدلو سترګو وینو.

دې هرڅه ته په کتو یو شمیر عسکر او پولیس چې د ایمان نور یې په سینو کې شغلې خوروي د امریکایانو په وژلو لاس پورې کوي او که دایې د لاسه پوره نه شي په خپلو پوستو او قرارګاوو کې هغه کسان په ښه کوي چې د امریکا ګټو ته وفادار وي او یا هم د خپلو وسلو او مهماتو سره طالبانو ته تسلیمیږي.

ها - دا هم باید ووایو چې تر دې وخته طالبانو د هغو عسکرو او پولیسو تود هرکلی کړی کوم چې پورته یاد شوي کارنامې تر سره کړي.

طالبان چې د غلام حکومت او د دوی د بادارانو پر خلاف یې سنګر نیولی خپل هیواد او اسلام ته د وفادارۍ او ژمنتوب په ډګر کې لکه ستوري ځلیږي.

اولس او اولسي پرګنې هم تر هر چا په طالبانو زیات باور لري او د حکومت څخه سخت ناراضه او هیڅ د باور وړ یې نه ګڼي کرکه او نفرت ترې لري.

نو دا وجوهات دي چې ډلې ډلې عسکر، پولیس او اربکیان د خپلو وسلو سره طالبانو ته تسلیږي او اولس طالب ته په خپله غیږه کې ځای ورکوي.

طالبانو ته هم مناسب دي چې اوس خپله اوتوریته او باور نور هم په خپله اسلامي او افغاني تړولنه کې لوړ وساتي تر څو د خپلو ولسونو د امید غوټۍ ګلونه وسپړي.



# طالبان

## د بل تر اثر لاندې سوله نه غواړي

لیک : م خاموش

ورمه ورځ د ارګ لخوا په یوه خپره شوې اعلامیه کې وویل شول، چې طالبان د ګلبدین حکمتیار د سولې تر اثر لاندې راغلي او یو شمیر د طالبانو دعالي شورا غړي غواړي د حکومت سره سوله وکړي.

دا اعلامیه د ارګ څخه په داسې حال کې خپره شوه، چې د حکمتیار د سولې پر مهال او د سولې وروسته طالبانو پر کندوز، هلمند، فراه، ارزګان او نورو ولایتونو کې جګړو او بریدونو ته زور ورکړ.

که دحکمتیار د سولې اثر لاندې طالبان راغلي وای نو اوس به په هېواد کې ټول وسله په لاس طالبان حکومت ته تسلیم شوی وای ځکه حکمتیار خو د حکومت سره سوله نه ده کړې حکومت ته تسلیم شوی دی.

د دوه کالو راپدیخوا د حزب اسلامي ټول غړي د حکومت په لوړو او ټیټو پوستونو کې مقرر شوي دي د ۲۰۰۵ میلادي کال راپدیخوا د یوه پروګرام له مخې یوشیمر حزبیان کابل ته د حزب اسلامي په نامه ولیږل شول هغوی په حکومت کې ضم شول او پاتې یې د حکمتیار صاحب په مشرۍ د سولې په نامه یوه میاشت دمخه حکومت ته تسلیم شول.

طالبانو کې به یو څه سیاسي کمزوري وي، چې په یو شمیر جهادي مشرانو یې باور لاره، هغه باور دا و چې له یو شمر جهادي مشرانو څخه طالبانو دا تمه درلوده چې د روسانو په څیر دې جهادي مشران د امریکا په مقابل کې هم مقاومت وکړي.

خو په افسوس سره د تمې او هیلې برخلاف یو شمیر جهادي مشران امریکا سره د افغانانو په وژلو او هیواد ورانولو کې ملاتړي شول.

طالبانو چې څومره پر یو شمیر جهادي مشرانو باور لاره همغومره پرې بې باوره شول، ځکه هغوی د امریکایي پوځونو په وسیله د طالبانو د نظام د نسکورولو وروسته د بن دغونډې جوړ شوي حکومت ته تسلیم شول.

که د ارګ خپرې شوې اعلامیې ته وګورو نو بیا خو داسې بریښې چې طالبان دې هم د حکمتیار په څیرحکومت ته تسلیم شي.

حال دا چې طالبانو د امریکا او ورسره د اشر ګړو هېوادونو د پوځونو په مقابل کې خپل دریځ د جګړو او بریدونو په دوام نور هم پیاوړی کړ.

طالبان جګړه نه غواړي سوله غواړي او د یرغلګرو په مقابل کې د خپلې کاملې ازادۍ د ترلاسه کولو لپاره جګړې ته دوام ورکوي.

د طالبانو یو شمیر دعالي شورا غړي نه، بلکې ټول طالبان چې په ټول هېواد کې د بن د غونډې جوړشوي حکومت پرخلاف په جګړه بوخت دي، دا ټول د سولې د پاره جګړه کوي، چې بهرني پوځونه له افغانستانه ووځي، پر ولس شپني عملیات بند شي بیا به په ټول افغانستان کې د طالبانو هیله (سوله) پوره شي.

طالبانو ددې د پاره وسله نه ده راخیستې، چې خپل هېوادوال او یا په پوځ کې خپل افغان ځوانان ووژني.

که طالبان خپل افغانان وژني بیا نو سوله د چا لپاره غواړي؟ او جګړه د څه د پاره کوي ؟

که ارګ دي ته خوښ وي، چې حکمتیار د نظامي او سیاسي زوال وروسته حکومت ته تسلیم شو طالبان به هم تسلیم شي، نو ارګ دې په اعلامیو خپل او د رسنیو وخت نه ضایع کوي.

## زما ورور "محمد حقاني"

# څنګه شهید شو؟

لیکوال: اسیر انس حقاني

ډیره موده وشوه چه نه می وو لیدلی خو داځل مې په زړه کې ډیره تلوسه وه ډیر مې یادیده ما ویل کله به راځي ؟ سترګې مي تل هغې لارې ته غړولې په کومه باندې به چې راتلو. ورځې تیر شوې ، انتظار اوږد شو اونۍ وشوې. مازدیګر و لمر د غرونو له څوکو څخه وروستۍ وړانګې ټولولې ژوند په خپل ناول کې د یوې بلې ورځې کیسه کښله چې د ماشومانو غږ مې واوریدو: زیری مې دربانديې، زیری مې دربانديې....زه نه پوهیدم د غمونو په دې ستر طوفان کې زمونږ په خوا کومې خوښۍ لار راغلطه کړې ده ؟ ایا چیرې مجاهدینو ته الله ج کومه ستره فتحه ورنصیب کړې ده ؟ ایا بیا د صلیبیانو په ځالو استشهادي مجاهدین ورننوتي دي ؟ ایا له ائمة الکفر څخه کوم یو جهنم ته رسیدلی دی؟ څه به شوي وي ......؟

دا انتظار د یوه ماشوم زیري مات کړو ویل یې : انسه زیری به راکوې ګوره زیری به راکوې.. د محمد ځوی پیدا شو.

بس یوه خوشحالي جوړه وه په کلي کې اختر وو همدا ورځ تیره شوه له ماښامه وروسته مو په خپلوانو کې یو سپین ګیری له دې فاني دنیا څخه ابدي دنیا ته په سفر شو د شپې مهال د کورنۍ لرې او نږدې خپلوان ټول له یو بل سره خبر شول ورته یی وویل صبا جنازه په دوه۲ بجی ده ، وختي حرکت راوکړئ که څه هم یو طرف ته خفګان وو بل طرف ته په زړه کې خوشحال وم ما ویل له ډیرې مودې وروسته به محمد ووینم د محمد ټول یاران د محمد په انتظار وو.

صبا ورځ د جنازې وخت راورسیدو مونږ ټول ډیر په بیړه د جنازې په لور لاړو هلته مې هم یوې بلې خواته په ډیر لیوني انداز کې په محمد پسې سترګې غړولې خو په زړه کې نیولی غوندې وم محمد مې و نه موندلو د موټرو غږ به مې واوریدو زما سترګې بیا هم د هر یوه موټر په دروازه د محمد لپاره خښې وې بیا هم نه وو.

ډیر وروسته مې یو موټر ولید چې ورته ومې کتل له مخکې سیټ څخه یې یو ماشوم راښکته شو ورپسې یو سړی راښکته شو چه سر یې پورته کړو وه مې پیژندو ورمنډه مې کړه د ده هم په ما نظر وه لګیدو له ورایه په خندا شو کله چه وروړسیدم یو بل ته مو کلکې غیږې سره ورکړې نه پوهیږم دا ولې دومره خوږ شوی وو ؟ زړه مې نه غوښتل چه له ځانه یې لرې کړم له روغبړ وروسته ما ورته د نوي ځوی مبارکي ورکړه محمد ډیر خوشحاله شو راته یې وویل ډیر ورته خوشحاله یم بس په دیدن یې موړ نشوم دا واقعه رامنځته شوه زړه مې غوښتل چه لږ وخت ورسره تېر کړم بیا مې یو عکس ورڅخه واخیست ما ویل تاسو ته به یې هم در ښکاره کړم او زه به هم کله نا کله مینه وربانديې ماتوم .راځه کیسې ډیرې دي بیا به ټولې کیسې په ارام سره وکړو او زما د بچي تصویر به هم وروسته درښکاره کړم بیا یې وګوره چه چاته ورته دې؟ د محمد لیدلو له ما څخه جنازه هیره کړه داسې مې نه انګیرله لکه زه چې د یو چا د جنازې په لمانځه کې د ګډون لپاره راغلی یم محمد ته مې کتل د محمد هره خبره مې زړه ته تیریدله غوښتل مې چې محمد یو څو خبرې نورې هم راته وکړې یو څه مو مجلس اوږد شي خو چې فکر مې شو صفونه برابر وو جنازه ودریده د جنازې د لمانځه په لوري لاړو لمونځ مو اداء کړو وروسته خلک د هدیرې په لور روان شول زه بیا محمد ته ور نږدې شوم دی له موټر سره ولاړ وو له محمد سره خپل دوه نور بچیان هم ولاړ وو چه له ځان سره یې



راوستي وو په هغو دوو بچیانو کې يې يو ته وويل سهيله ځويه له ماسره کورته ځې او که پـه دا بـل مـوټر کـې ؟ سـهيل ورتـه وويل مونږ په دا بل مـوټر کـې ځـو بيـا يـې هغه دواړه ځامن په بل موټر کې کورتـه وه ليږل او مونږ د هديرې پـه لـور روان شـو د مړي تر تدفين وروسته له هديرې څخه لږ لـيرې مـونږ پـه يـوه ټيـټ ديـوال بانـدې کېناستو څپل منځ کې مـو مجلس شروع کړو محمد نور ملگرو هم نه وو ليـدلی څـو نور ياران هم راغلل هغه هم ټول له محمد څخه گير چاپير راټـول شـول مجلس مـو دومره خوندور شو چه د ټولو له ذهن څخـه دا کيسه وتلې وه چه مونږ چيرته ناست يـو او د څه لپاره راغـلي يـو مـړی دفـن کـړی شوی وو دعا او بيان وشول خلک موټرونو ته پورته شول ما غوښتل چـه زه لـه محمد سره يوځای کينم کله چه ورنږدې شوم چه د موټر کسان پوره وو محمد ته مـې وويـل اوس اول چيرې درومې ؟ محمد وويـل د غرمې ډوډی مې نه ده خوړلې ملگري بـه ډوډۍ تياره کړي زه به يو وار تـر کـوره لاړ شـم لـه خپلـې خـوږې مورجـانې سره بـه روغبړ وکـړم بيا بـه ډوډۍ وخورم مـا ورتـه وويله سمه ده له ماښځه وروسته به مجلس کوو تاسې درځـۍ دوئ هـم روان شـول زه يو لوی موټر تـه ورپورتـه شـوم يـو ملگـري وويـل بـې پيلوټـه طبـارې ډېـرې دي دعـا وايئ هسې نه بمبار وکـړي زمـا هـم ورپـام شو بس چه څـه مـې زده وو هغـه مـې تيـر کړل کله چـه زمـونږ مـوټر حرکت وکـړو زه داسې په فکرونو کـې ډوب وم نـه پوهيـدم

چه کومې خيالي دنيا ته به تللی وم لـه لږ ځنډ وروسته چه مـې وکتـل زمـوږ مـوټر پـه پانبه سړک روان وو په څنگ کې نـور هـم ډير موټران وو مازديگر تـه لـږ وخـت پـاتې وو ځوانان ميدانونو ته راوتلي وو لـوبې يـې کولې خلکو ته مې چه پـام شـو ټولـو يـودم يوې او بلې خواته د اسمان په لوري وکتل او سرونـه يـې ورپسـې تـاو کـړل مـا ويـل خدايه خير لکه چه بمبار يې وکړو هيڅ غـږ مې تر غوږ نشو د موټر اواز ډير تيز وو کلـه مې چه د غرب خواته وه کتل زمـونږ څخـه په لږ فاصله کې پـه لانـدې خـوړ کـې تـور دودونه پورته شول او يو قوي اواز مـې هـم تـر غـوږ شـو ټـول موټرونـه و دريـدل مـا موټروان ته وويل تـه لـږ ور مخکـې شـه د کوڅې خولې پورې مـوټر حرکت وکـړ کلـه چـه د کـوڅې خـولې تـه ورسـيدو مـوټر وه دريدو ما دروازه خلاصه کړه او په منډه سر شوم په زړه کې مـې ډېـرې وسوسـې پيـدا شوې ما ويل څوک به يـې شـهيدان کـړي وي خدايه ته رحم وکړې کله چه له کوڅې واوښتم خوړ ته مې نظـر کـړو سـپين مـوټر مـې تـر سـترگو شـو پـه سـړک ولاړ وو او سوری سـوری شـوی وو خلـک ټـول يـوې بلې خواته ولاړ وو څوک نه ورنږدې کيـدل ما څپله ځغاسته جاري وساتله څـو کسـان نور هم ورمخکې شول يو مـوټر هـم ورغـی مـا لـه يـو سـړي وه پوښـتل څـوک يـې وويشتل هغه وويل معلومات نشته کله چـه ورنـږدې شـوم هغـه نـورو کسـانو د مـوټر دروازې خلاصې کـړې چـه وروميـې سـيټ څخه يې يو نفر لانـدې را ولويـدو مـا چـه

ورته وکتل برگ رنـگ کـې کـوټ يـا جمپـر يې په تن وو زړه مې يوه څړيکه وکړه او له خولې مې آه آه اوازونه راپورته شول د بـرگ کوټ څښتـن مطيع الله وو چـه لـه محمـد سره به هـر وخـت يوځـای گرځـېده زه پـوه شوم چه ستا يار يې په نښـه کـړی .مطيع الله لانـدې پـه ځمکـه ولويـدو وروسـتی سلگـی يـې شروع وې او نـور يـې لـه دې فاني دنيا څخه د تل لپاره سترگې پټـولې د مـوټر بلـې خواتـه چـه ورغلـم د مـوټروان دروازه يو ملگری په ډيره بيړه سره خلاصـه کړه د موټروان په سيټ باندې مـې شريـن ورور لکه د سپرلي تـازه گـلاب پـروت و او په مخ باندې يـې وينـې روانـې وې داسـې ښکاريدې لکـه شـبنم چـه پـه تـازه گـلاب پروت وي زما لـه رسيدو مخکـې محمـد د شهادت جام نوش کړی وو په غيږ کې يې د ميزايل يوه غټه ټکره پرته وه زه ورتـه پـه حيرانتيا سره ولاړ وم زړه مـې نـه اخيسـته چه دا حقيقت دی ما ويل خوب وينم څـو کسان راغلل محمد جانـان يـې لـه موټره راښکته کـړو زه پـه ځـان پـوه شـوم چـه دا ريښتيا ده د يـار پـه لـوري مـې نظـر وکـړو سينه يې ټوله غلبيل غلبيل وه په وينو کـې لـت پـت وو قسـم بـالله زه هغـه څـه نشـم ليکلی چه پـه مـا بانـدې څنگـه حـال تيـر شوی تردې ځايه يې کافي بولم زما يې بيا پخواني دردونه راوېښ کړل...... بس

احمدالله احمدزی

# د «إنه كان ظلوما جهولا» لنډ تفسير، زموږ د ټولنې يو حقيقت او يوه غوښتنه

د بلاغت او نقد معاصر امام علامه دکتور محمد محمد ابوموسی وايي، چې څېړونکی او باحث بايد د ورک او غايب علم په لټه کې شي او که يوازې هغه څه پسې ګرځي، چې نورو سره دي، نو دا سړی يوازې خپل ځان او ټولنه تېرباسي او دغه مهال، چې څوک د علم دعوه کوي، دا علم نه، بلکې يو وهم، بلکې د نفاق يوه برخه ده، چې پر مخ د علم پرده اچوي او خپل جهل پرې پټوي.

د علامه په خبره د زړه له تله دردېږم، چې موږ او زموږ ټولنه کې خو د علم او څېړنې څرک نه لګيږي او حتا دومره خواري هم نه کوو، چې پخوانيو علماوو خپلو راتلونکو نسلونو لپاره کومې خواري کړې، د هغو د لوستو همت هم نه کوو او زموږ په ټولنه کې هر وګړی هڅه کوي، چې ځان د ټولنې تر ټولو پوه، زيرک او ستر محقق وښيي او دا خوی په خپله د ستر جهل ښکارندوی دی.

دکتور ابو موسی وايي، چې مصر کې له علامه محمود شاکر وروسته عالم نه دی تېر شوی، نو زه هېښ شم، چې ده ته د مصر پر مختللې علمي ټولنه کې عالم نه ښکاري، نو زموږ ټولنې باره کې به څه وايي.

زموږ ټولنه کې د پخوانيو متونو، چې د علم او فکر بنسټ جوړوي د لوستو توان او همت نه شته او څوک يې، چې لولي، نو ډېری لوستونکي فکر او هڅه نه کوي، چې د کتاب حق ادا کړي او کتاب په خبرو راولي.

که خبره په ځانګړې توګه د قرآنکريم د معانيو د ژور او سمې پوهې شي، له ګوتو شمېر علماوو، پرته زموږ ټولنه کې لا هم په ډېر تکلف د قرآنکريم ترجمې کيږي، چې د لوستونکي او اورېدونکي زړه پرې اوبه نه څښي، او يوازې د دې لپاره يې مني، چې د الله تعالی کلام دی او که شک په کې وکړي، نو ايمان به يې خوار شي.

د دې ټولو ستونزو بنسټيز لامل دا دی، چې موږ له عربيت، صرف، نحوې، بلاغت، اشتقاق او نورو اړينو علومو دومره لرې يو، چې له امله يې د قرآنکريم په معانيو سم نه پوهيږو.

د ساري په توګه «إنه كان ظلوما جهولا«

الله تعالی د احزاب سورت په پای کې فرمايي: «إنا عرضنا الأمانة على السماوات والأرض والجبال فأبين أن يحملنها وأشفقن منها وحملها الإنسان إنه كان ظلوما جهولا«

ډېری مفسرينو د دې ايت ظاهري معنا اخيستې، چې الله تعالی ديني احکام او فرايض اسمانو، ځمکو او غرونو ته وړاندې کړل، هغوی يې له نيولو انکار وکړ او انسان دا امانت ومانه، بې شکه انسان ظالم او جاهل دی.

دا تفسير د چا زړه سم نه مني او د ايت د وروستۍ برخې لپاره له ډېرو تاويلاتو کار اخيستل شوی، چې ټول تکلفات دي.

هغه ورخ مې د څلورمې هجري پېړۍ د وتلي لغوي او نحوي امام ابو اسحاق ابراهيم بن محمد بن السري بن سهل الزجاج البغدادي «زوکړه ۲۴۱ه- وفات ۳۱۱ه» کتاب «معاني القران وإعرابه» وکوت او د دې ايت د معنا او تفسير په لټه کې وم.

امام زجاج وايي، چې د دې ايت معنا د لغت له پلوه دا ده، «موږ وړاندې کړ امانت اسمانونو، ځمکو او غرونو ته» دلته يې د امانت معنا مناسب وظايف ښوولي. اسمان ته يې وويل، چې خپل کار به سر ته رسوي، ځمکې ته يې د خپل کار سرته رسولو امر وکړ او غرونو ته هم «فأبين ان يحملنها» امام زجاج وايي، چې دلته حمل په معنا د ترک او خيانت دی. عرب وايي، چې (فلان حمل الامانة اي خانها) فلاني امانت حمل کړ، يعنې خيانت يې په کې وکړ. نو اسمانونو، ځمکو او غرونو په خپلو دندو او وظايفو کې خيانت نه دی کړی او تر اوسه خپل کار د الله تعالی له امر سره سم پر ځای کوي «وحملها الانسان» انسان دا امانت حمل کړ، يعنې خيانت يې په کې وکړ. دلته له انسانه مطلق انسان نه دی مراد، بلکې هغه ځوک ترې مراد دی، چې د الله تعالی له امرونو سرغړونه کوي. امام زجاج وايي، چې منافق او کافر د الله تعالی امانت خيانت کړی دی او ځوک چې د الله له لوري ورسپارل شوي فرايض او امانت کې خيانت کوي، دوی باره کې د الله تعالی پرېکړه بيا دا ده، چې «انه کان ظلوما جهولا» دا خلک ظالمان او جاهلان دي.

پښتانه مفسرين پښتو کې د دې ترجمه داسې کوي. کوم انسان، چې د الله تعالی له لوري په ورسپارل شوي امانت کې خيانت کوي، هغه «ظلوم او جهول دی» مقصر في العمل او مقصر په علم دی. د عمل له پلوه کمزوری او د علم او فکر له پلوه هم کوتاه کار او کمزوری دی.

لومړی خپل ځان بيا د علم نورو لارويانو ته د علماوو او استادانو دا سپارښتنه رسوم، که علم کوو نو بايد د پخوانيو علماوو، په ځېر خواري وکړو، نيتونه مو يوازې او يوازې د الله تعالی لپاره کړو، له تظاهر او ځان ښودنې ځانونه لرې وساتو، تل د علم او پوهې په لټه کې شو او هڅه وکړو، چې نورو دوستانو او مسلمانانو ته د علم لارې پرانيزو.

دکتور ابو موسی دا هم وايي، که موږ خپلو شاګردانو او راتلونکو نسلونو ته دومره علم ورکړ، چې موږ سره دی، نو علم به په ټپه ولاړ وي او که له ځانه لږ علم ورکړو، نو تولنه به د وخت په تېرېدو د جهل پر لور ځي او علم يوازې هغه مهال پرمختګ کولای شي، چې استادان شاګردانو ته له خپل ځانه زيات علم ورکړي، د علم لارې ورته پرانيزي او په اړونده موضوع کې د پراخې مطالعې سپارښتنه او لار ښوونه ورته وکړي.

په ډېر تاسف دا خبره کوم، چې زموږ په مدارسو او پوهنتونو کې استادان هېڅکله دا هڅه نه کوي، چې زده کوونکو ته له ځانه زيات علم ورکړي، د علم دروازې ورته پرانيزي او د درسي موضوع په اړه د زياتو مراجعو او مصادرو لارښوونه وکړي او حتا هغه کتاب هم نه ورښيي، چې استاد ترې د تدريسي کتاب د اسانتيا لپاره ګټه اخلي.

راځئ، دا ناوړه دود مات کړو، نفسونه وځپو، ځانونه تر تولو کمزوري او ناپوهه وبولو، د رښتيني علم په لټه کې شو او نورو ته هم د حقيقي علم په رسولو کې نه ستړې کېدونکې هڅې وکړو.

که دا اوسنی دود مو مات کړ او ټولنه کې مو د علم او معرفت د خپرولو هوډ وکړ، نو ټولنه به مو په ډېره لږه موده کې يو ځل بيا د پخوا په ځېر د علم، عرفان او رونتيا پر لور مزل پيل کړي او ځو چې دا لړۍ روانه وي، نو اجرونه او ثواب به يې هغو خلکو ته هم رسي، چې دا کار يې پيل کړی او ان شاء الله دا به مو له مرګ وروسته صدقه جاريه وي.

# امام ابوبکر ابن الأنباري رحمه الله

**زوکړه یې:**

د محدثینو سرخېل ، د قرآني علومو لـوی مفسر، مشـهور ادیـب او لغـت پېژاندی ، نـوم یـې محمـد ، کنیت یې ابوبکر او لقب یـې ابـن الأنبـاري و . د قاسـم زوی ، د محمـد لمسـی ، دبشـار کړوسی ، دحسن کودی ، دبیـان پرکتـی او د سـماعه پـردی و ، چـې د ۲۷۱ سپوږمیز کال د رجب پـه ۱۱، یـا ۱۴مـه نېټـه د عـراق د انبـار ایالـت ( او یـا پـه بغداد ښار کې) په یوه درنه علمي کورنۍ کې نړۍ ته راغی.

**زده کړې یې:**

ابن الأنباري ډېر کـوچنی و ، چـې لــه خپــل پــلار سره بغــداد تــه لاړ او لـومړنۍ زده کـړې یـې لـه خپـل عالم او مصنف پلار ابو محمد قاسم بن محمد انباری (دکـوفې دسـترو او اکـابرو علماوو لـه ډلـې و ) څخـه شروع کـړې ، ورپسـې یـې نـور علومـو او د حـدیثو زده کـړې لـه بېلابېلـو مسـلکي اسـتاذانو او نـامتو فقهـاو او محـدثینو څخـه ترلاسـه کړې.

**استاذان یې:**

علامـه ابـن الأنبـاري لـه زیـاتو نحویانو ، لغت پوهانو، قاریانو ، محدثینو او مفسرینو څخـه زده کـړې او روایتونـه وکړل ،چې دهغوی له جملې څخه ځینې په لاندې ډول دي:

- أبوه القاسم بن محمد الأنباري
- أبو العباس بن أحمد بن يحيى ثعلب
- إسماعيل بن اسحاق القاضي
- أحمد بن الهيثم البزاز
- أحمد بن سهل الأشناني
- ادريس بن عبد الكريم
- الحكيم الترمذي
- محمد بن يونس الكديمي
- محمد بن هارون التمار
- محمد بن أحمد بن النضر
- الحسن بن الحباب
- سليمان بن يحيى الضبي
- محمد بن يحيى المروزي
- أحمد بن سعيد الدمشقي
- إبراهيم بن موسى
- عبد الله بن بيان
- أحمد بن حسان
- عبد الله بن محمد بن ناجية
- بشر بن موسى
- أبو الحسن بن براء
- عبد الله بن خلف الدلال
- علي بن محمد بن أبي الشوارب
- أبـو شـعيب عبـد الله بـن الحسـن الحراني
- أبو جعفر محمد بن عثمان
- محمد بن المرزبان
- أحمد بن منصور
- أحمد بن عبد الله
- خلف بن عمرو العكبري
- موسى بن علي الختتلي
- أبو جعفر أحمد بن الحسين
- محمد بن عيسى الهاشمي
- محمد بن عبد الله
- أبو الحسن الأسدي



- أبو الحسن أحمد بن محمد بن عبد الله
- الحسن بن عليل العنزي
- أبوعبدالله المقدمي القاضي
- أبو العباس بن مروان الخطيب
- عبد الله بن عمر بن لقيط
- أبو بكر ابن درید



**تدريس يې:**

تر فراغت وروسته یې د تدریس او تصنیف ډگرته را مخه کړه ، چې خورا حېرانووونکې کارنامې یې ترسره کړې. هغه به طالبانو ته د کتاب له مخ درس نه ورکاوه ، بلکې ټول کتابونه به یې له یاده درسول ، د ښوونې او تدریس اسلوب یې ډېر زړه وړونکی و، د تدریس پرمهال به د شاگردانو پروړاندې ډېر لوراند، مهربانه او خاکساره و او د خپلو نه سترېدونکو هڅو له برکته یې اسلامي ټولنې ته له استعداده ډک پیاوړي عالمان وړاندې کړل.

**شاگردان يې:**

دعلامه انباري له مشهورو شاگردانو څخه ځینې دا دي:

- أبو علي القالي
- أبو أحمد العسكري
- الزجّاجي
- ابن خالويه
- أبو جعفر النحاس
- أبو الفرج الأصفهاني
- المرزباني
- محمد بن العباس الخزّاز
- أبو الحسين البوّاب
- الدارقطني
- ابن المأمون

**تقوى او حافظه يې:**

ابن الانباري له یوه پلوه د پریمانه اخلاقو ، تقوا او پرهېزگارۍ په گانه پسولل شوی او سپېڅلی انسان و، د ده په اړه علماء لیکي ، چې هېڅ جرم او گناه یې نه وه څرگنده شوې.

له بله پلوه د څواکمنې او حیرانونکې حافظې څښتن و ،چې سوانح لیکونکي یې د ذهانت او حافظې بې بریده ستاینې کوي.

**محمدبن جعفر تميمي وايي:**

له هغه څخه د ذهني علمي کچې په اړه پوښتنه وشوه ، هغه ورته داسې وویل: ماته یو دقرآن کریم (۱۲۰) تفسیرونه سره له سنده یاد دي او دا مې هم د ده په هکله اوریدلي دي ، چې ویل یې : د کتابونو ۱۳ ډک صندقونه مې په یادو یاد دي.

**ابوعلي قالی رانقل کوي:**

زموږ شیخ ابوبکر درې لکه بیته شعرونه یاد وو ، چې د مطلب او پیغام سرچینه یې له قرآن کریم څخه اخیستل شوې وه.

امام ذهبي یې د شعرونو د اندازې لگولو په اړه داسې وایي: له یاد شمېر اشعارو څخه پوره څلوېښت غټ غټ جلدونه جوړېږي.

**ابن ناصر الدين وايي:**

ابوبکر د هرفن ځانته سترامام و، هغه چې څومره تصنیفات کښلي ، دایې له کتابونو څخه نقل نه دی کړی؛ بلکې یوازې یې د خپل حفظ او یاد څخه لیکلي دي.

تصنيفات يې:

علامه ابن اباري پر تدريس او د شاګرانو پر روزنې سربېره ( له ۷۰ کتابو زيات ) په سلګونه جلده کتابونه هم وليکل او امت ته يې لويه علمي زېرمه په ميراث پرېښوده.

هغه غريب الحديث نومي کتاب په (۹۰۰۰۰) نوي زره مخونو کې وليکه ، شرح الکافي يې په ۲۰۰۰دوه زره ، الهاءآت يې ۲۰۰۰دوه زره او الجاهليات يې په ۱٦۰۰شپاړسوه مخونو کې وليکه.

**دنوموړي ځينې کتابونه په لاندې ډول دي:**

- عجائب علوم القرآن
- خلق الأنسان
- كتاب الأضداد
- شرح القصائد السبع الطو الجاهليات
- إيضاح الوقف والابتداء في كتا ل الله عزّ وجلّ
- شرح الألفات المبتدئات في الأسماء والأفعال
- شرح ديوان عامر بن الطفيل
- مسألة في التعجب
- الهاءات في كتاب الله
- المذكر والمؤنث
- الأمثال
- رسالة المشكل
- الزاهر
- الأمات
- الكفافي
- شرح مفضليات
- خلق الفرس
- شرح غاية المقصود في المقصور والممدود لابن دريد
- شرح خطبة عائشة أم المؤمنين في أبيها
- الرد على من خالف مصحف عثمان

**د ژوند وروستۍ شېبې يې:**

د عمر په وروستيو وختونو کې چې په سختې ناروغۍ اخته و، دهغه دکمزورتيا په اړه ورڅخه پوښتنه وشوه ، ده يې په ځواب کې وويل:

په هره اونۍ (هفته) کې لس زره پاڼې کتابونه وايم.

دقرائت ، فقه او تفسير دعلومو سترامام شاعر اوليکوال علامه ابن انباري د ۳۲۸ سپوږميز کال د لوی اختر په مبارکه ورځ د ۵۷ کلونو په عمر په بغداد کې له دې نړۍ وکوچيد او په خپل کور کې خاورته وسپارل شو.

لوراند خدای دې پرې خپل کرم ولوروي، آمين

## داسلام لومړی خليفه حضرت ابو بکر صديق رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمايي:

**علم د پيغمبرانو ميراث او شتمني د کافرانو(فرعون او قارون) .**

**خبر اوسئ !چې جهاد پرې نږدئ ، ځکه هر قوم چې د الله په لاره کې جهاد پرېږدي، هغه خوار او ذليل کيږي.**

**په زغم کې هيڅ تاوان نشته او په ژاړه کې هيڅ ګټه.**

**که غواړئ چې هوسايي مو په برخه شي، نو خپله ژبه د شکايت او ګيلو نه ليرې وساتئ.**

**خوار او بيوزله هغه څوک دي، چې په دنيا کې دوست او ملګري ونلري.**

**د موراو پلار خوشحالي ،په دنيا کې د نيک بختۍ سبب ګرځي او په آخرت کې د ژغورلو وسيله.**

**اوښکې د هغې ورځې په تيريدو تويوئ، چې بې ښيګړې مو تيره کړې وي.**

**د هر شئ د ثواب پيمانه موجوده ده، خو د صبر او زغم د ثواب اندازه نشته.**

**رښتيا امانت او دروغ خيانت دي .**

# د اعداد مدرسه

عرفان الله عرفاني

چمتو فعال په توره شپه کې اوسه
ګرانه بیدار ګوره پیره کې اوسه

غړ په ملګرو هر ساعت کې کوه
سم په تماس مخابره کې اوسه

پام کړه مبایل جیب کې مه ګرځوې
ټوپک په لاس ډکه چانټه کې اوسه

دښمن ته غلی په کمین کې کېنه
د غره لمن یا په باغچه کې اوسه

عادي حالت کې به خاکسار ګرځېږې
ډک له غرور په معرکه کې اوسه

د بیت المال سره احتیاط به کوې
تل د اعداد په مدرسه کې اوسه

د خپل امیر ښه اطاعت پکاردی
ښه په اخلاص رب ته سجده کې اوسه

سپېڅلی صف درنه ګډوډ چې نشي
په دې روانه قافله کې اوسه

کله زموږ د غزل شپې ته راځه
د(عرفاني) سره حجره کې اوسه

# Shahamat



**دانځورونو شرحه :**

په لومړۍ پښتې دهلمند دناوې په ولسوالی دفدايي برید انځور

په دویمه پښتې د مجاهدینو په لاس ولجه شوې شوبله

په دویمه پښتې دویم انځور دناوې ولسوالی ودانی دبرید نه وړاندې